


**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د
روزنې او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست



# پښتو

## یوولسم ټولګی

## (دویمه ژبه)



د چاپ کال: ۱۳۹۰ هـ. ش.

پښتو – یوولسم ټولګی (دویمه ژبه)




**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو
د روزنې او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تألیف لوی ریاست

# پښـــتو

## یوولسم ټولګی

## دویمه ژبه

د چاپ کال: ۱۳۹۰ هـ. ش.



**لیکوال:**

ـ پوهندوی محمد آقا شېرزاد

**علمي او مسلکي ایډیټ:**

ـ محمد قاسم هیله من

**دیني، سیاسي او کلتوري کمېټه:**

ـ ډاکټر عطاء الله واحدیار د پوهنې وزارت ستر سلاکار او د نشراتو رئیس.
ـ حبیب الله راحل د تعلیمي نصاب د پراختیا په ریاست کې د پوهنې وزارت سلاکار.
ـ مولوي محمد آصف کوچی

**د څارنې کمېټه:**

ـ دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکز معین.
ـ دکتور شېرعلي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول.
ـ د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر گلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس.

**ډیزاین:**

ـ صفت الله مومند

**کمپوز:**

ـ صدرالدین ابراهیم خېل



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي
پا میر یا ن، نو ر ستا نیا ن

براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه اسمان

په سینه کې د اسیا به
لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم



## د پوهنې د وزیر پیغام

### ګرانو ښوونکو او زده کوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د معاصر علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې رامنځته کېږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم علمي او رغنده انکشاف ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې ارزښتونو چمتو او ترتیب شوی دی. علمي ګټورې موضوعګانې پکې زیاتې شوې دي. د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکو فعال ساتل د تدریسي پلان برخه ګرځېدلې ده.

هیله من یم دا کتاب له لارښوونو او تعلیمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تدریس شي او د زده کوونکو میندې او پلرونه هم د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې ګډه مرسته وکړي چې د پوهنې د نظام هیلې ترسره شي او زده کوونکو او هېواد ته ښې برياوې ور په برخه کړي.

پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ ګران ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې خپل مسؤولیت په ریښتوني توګه سرته رسوي.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو، دوطن دوستۍ د پاک حس په ساتلو او علمي معیارونو سره سم د ټولنې د څرګندو اړتیاوو له مخې پراختیا ومومي.

په دې ډګر کې د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده وړاندیزونو له لارې زموږ له مؤلفانو سره د درسي کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه چې د دې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې مرسته کړې، له ملي او نړیوالو درنو مؤسسو او نورو دوستو هېوادونو څخه چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي کتابونو په چاپ او وېش کې یې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردګ

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

# لیک لړ

| شمیره | د لوست نوم | مخ |
| --- | --- | --- |



# حمد

ټوله ثنا او ستاینه یوازې د الله ﷻ له شان سره ښايي؛ ځکه چې هغه د ټولو مخلوقاتو پیداکوونکی او پالونکی دی. د الله تعالی صفات له حده زيات دي. ټول مخلوقات د خدای ﷻ حمد او ثنا وايي.

د الله تعالی د لویوالي، قدرت او صفاتو ستایلو ته حمد ویل کیږي. موږ خپل لومړی لوست د پښتو ژبې د یو شاعر پر حمد پیلوو:

_ حمد څه ته وايي؟

کل ثنا ده خدایه ستا | چې ته رب یې د هر چا
ښکته پورته چې هر څه دي | همه واړه دي له تا
ته څښتن د کل عالم یې | بل یو سیال نشته د تا
واړه خواست کاندي له تانه | که بادشاه دی که ګدا
طمع ته له هیچا نه کړې | کا، له تا واړه اشیا
ته قدیم غني پادشاه یې | نور همه دي، نو پیدا
ستا کمال دی بې زواله | دا ویی دی په رښتیا
ستا صفت له حده زیات د ی | څوک یې څرنګ کا ادا
که هر شی کشاد زبان کا | ستا په وصف شي ګویا
مشغول وي تر زروکالو | شپه ورځ ستا په ثنا
هم به هومره ادا نه کا | لکه څاڅکي له دریا
ستا قدرت ته نه رسیږي | خدایه عقل د هیچا

د ((لتاړ)) و خراب زړه ته
ربه سر کړې مدعا
(د ملا لتاړ له دیوان څخه)

**د خپل ځان پېژندل د خدایﷻ پېژندل دي.**
**((حدیث شریف))**

د حمد ویونکي ملا لتاړ لنډه پېژندنه:

ملا لتاړ په هندوستان کې د اوسېدلو پښتنو شاعرانو په ډله کې د دیوان خاوند شاعر تېر شوی دی. د شاعر د ژوند په باب باوري کره او بشپړ اسناد په لاس کې نشته، خو د یو شعر له مخې یې اټکل کېدای شي چې نوموړی د (۱۱۶۱هـ.ق.)کال په شاوخوا کې زېږېدلی او په (۱۱۹۰هـ.ق.) کال یې دیوان بشپړ کړی.

ښایي د ملا لتاړ اصلي ځای سلمان یا شلمان وي او عمر یې په هندوستان کې تېر کړی دی.

دیوان یې په (۱۳۶۷هـ.ق.) کال په کابل کې چاپ شوی، غزلې، رباعي، قصیده ډوله نظمونه او مخمس لري. د رحمان بابا د سبک له پیروانو څخه و، د دیارلسمې پیړۍ تر لومړیو پورې ژوندی و.

د متن لنډیز:

هغه کلام (نظم وي که نثر) چې پکې پرله پسې د خدای تعالیٰ د قدرتونو، لویوالي ستاینه شوي وي، حمد بلل کېږي.

څښتن تعالی د ځمکې او اسمانونو مالک او پیداکوونکی دی. شریک او ساری نه لري، قدیم غني بادشاه دی، زوال نه لري، طمع او توقع یې چاته نشته، نور امیران او بادشاهان واړه ورته محتاج او دده په فرمان دي.

د الله تعالی ستاینې له حده زیاتې دي او بنده یې له پوره ستایلو عاجز دی، د هیلو، امیدونو او مدعاوو پوره کوونکی یوازې یو الله ﷻ دی.



## فعالیتونه

۱ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د حمد په اړه خبرې وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې حمد په پټه خوله ولولي او مفهوم ته دې ځیر شي.

بیا دې هر زده کوونکی په وار سره د ټولګیوالو په وړاندې متن په لوړ اواز ولولي.

۳ـ درې تنه زده کوونکي دې په وار سره د متن نوي لغات معنا او په مناسبو جملو کې وکاروي.

۴ـ یو تن زده کوونکی دې پخپله خوښه د حمد دوه بیته د تختې پر مخ په نثر ولیکي.

۵ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي، یوه ډله دې د حمد لومړي اووه بیتونه او دویمه ډله دې د حمد وروستي شپږ بیتونه په نثر واړوي او د ډلې استازي دې د نورو په وړاندې ولولي.

۶ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

کوم ډول کلام ته حمد ویلی شو ؟

د کتاب پیل ولې په حمد سره کېږي ؟

د حمد او مناجات توپیر څنګه کولای شئ؟

۶ـ درې تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي په وړاندې د متن لنډ مفهوم په څو جملو کې ووایي.

۷ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار ووایي چې د ژمي په رخصتیو کې یې څه کړي دي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې د خدای تعالی جل جلاله د نعمتونو او د هغوی په وړاندې د انسان د شکر کولو په اړه لږ تر لږه اته کرښې ولیکي او په بله ورځ دې په ټولګي کې ولولي.



# نعت

حضرت محمدﷺ د خدایﷻ وروستی پیغمبر او استازی دی.

په ده باندې د پېغمبرۍ لړۍ ختمه ده. له ده څخه وروسته بل پېغمبر نه راځي، ځکه چې خدایﷻ خپل مکمل هدایت (قرانکریم) په ده باندې نازل کړی.

ټول مؤمنان په دې مکلف دي چې د اسلام په ستر لارښود حضرت محمد مصطفیٰﷺ باندې درود ووایي او ستاینه یې وکړي.

هغه کلام، (نظم وي که نثر) چې پکې د حضرت محمدﷺ د شخصیت، اخلاقو او کړو وړو ستاینه شوي وي، نعت ګڼل کېږي.

د حمد او نعت توپیر څنګه کولای شئ؟

که مطلب دې دی وصال د محمدﷺ
تل په زړه کې لره خیال د محمدﷺ

آیینه کړه د زړه سترګې ورته ګوره
خود به وویني هر حال د محمدﷺ

د هر ګل حسن به ستا د سترګو خار شي
که دې ولیده جمال د محمدﷺ

له درود څخه طلب د عدد مکړه
ژبه وچه کړه په سوال د محمدﷺ

له اوله د خپل زړه په حال اګاه شه
بیا هاله کړه قیل و قال د محمدﷺ

چې سپوږمۍ یې دامن ګیره شوه د حسن
لمر په حسن کله سیال د محمدﷺ

هر انسان د ده و وصف ته قاصر دی
وصف کړی ذوالجلال د محمدﷺ

صنوبر به ورته کږ بید مجنون شي
که دې کښېنو پر زړه نهال د محمدﷺ

له کوثره مې روان کړه تشنه لبه
خو نصیب مې کړه زلال د محمدﷺ

خدای رانجه د (شمس الدین) کړه هغه خاورې
تر قدم چې وي پایمال د محمدﷺ

د شمس الدین کاکړ لنډه پېژندنه:

د شمس الدین د زوکړې او مړینې سمه نېټه معلومه نه ده، یو شمېر څېړونکي یې زوکړه تر (۱۱۸۰هـ.ق.) وروسته ګڼي.

شمس الدین ښه عالم او ادیب شاعر و، په ځوانۍ کې هند ته تللی و او د خپل عمر ډېره برخه یې د هندوستان په ښارونو کې تېره کړې ده. په آخر د عمر کې خپلې خاورې او خپل هېواد ته راستون شوی.

په غالب ګومان د عمر تر پایه په کندهار کې و. دیوان یې دپښتو ټولنې له خوا چاپ شوی.

د سراج الموتي په نامه په پښتو کې یو بل اثر هم لري. په شعر کې یې فلسفي، تصوفي، اخلاقي او تربیوي افکار په ښه توګه نغښتي دي، په ادبي فنونو کې یې هم ښه لاس درلود، په فقه، تفسیر، او احادیثو کې هم د لوړ مقام څښتن و.

د متن لنډيز:

حضرت محمدﷺ د اسلام ستر لارښود او آخرين پېغمبر دی.

په ده باندې د پېغمبرۍ سلسله ختمه شوې او وروسته ترې بل پېغمبر نه راځي.

د پېغمبرﷺ وجود، هدايات او کړنلاره د ټول عالم لپاره د رحمت سبب او باعث ده.

دی د نېکو، اوچتو او لوړو اخلاقو لرونکی و.

د پېغمبرانو عليهم السلام پېروي کول، د هغو اطاعت او منښه سړی سمې لارې ته رهنمايي کوي، په پېروۍ کې يې انسان خپل اصلي او حقيقي منزل ته رسېږي. د پېغمبر پېروي په حقيقت کې د الله پاک پېروي او متابعت دی.

الله پاک د خپل پېغمبر ستاينه کړې ده، بنده که هر څومره د محمدﷺ ستاينه وکړي بيا يې هم له کامل وصف او ستاينې نه عاجز دی.



۱ـ يو زده کوونکی دې پخپله خوښه متن په لوړ اواز ولولي او نور ټولګيوال دې درسي کتاب ته وګوري.

۲ـ دوه تنه زده کوونکي دې د حمد او نعت په توپير باندې خبرې وکړي.

۳ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د متن اصلي مفهوم په ساده ژبه بيان کړي.

۴ـ زده کوونکي دې په وار سره لاندې لغات په ډلو کې يو له بل څخه و پوښتي او په جملو کې دې راوړي:

(لړۍ ، وصال، تل ، وصف، زلال، سيال، کوثر)

۵_ زده کوونکي دې په څو ډلو  وویشل شي، هره ډله دې یو یو بیت په نثر واړوي او مفهوم دې یې ټولګیوالو ته ووایي.

۶_ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

د شمس الدین کاکړ دیوان د کومې مؤسسې له خوا چاپ شوی دی؟

شمس الدین څوک او چېرته زېږېدلی و ؟

د پیغمبرﷺ اطاعت او پېروي سړي ته څه وربښي؟

۷_ زده کوونکي دې د ژبې په اړه په وار سره یوه یوه دقیقه خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د لوستل شوي نعت لنډ مطلب په څو جملو کې په ساده ژبه ولیکي او د بلې ورځې د پښتو مضمون ساعت کې دې ټولګیوالو ته ووایي.

**حضرت محمدﷺ فرمايي:**
**څوک چې پر کشرانو زړه سوی او د لویانو درناوی نه کوي، زما په ډله کې نه دی.**



# پندونه

پخوانیو مشرانو، حکیمانو، پوهانو، د علم او ادب خاوندانو د خپل ژوند د تجربو او پوهې له مخې موږ ته یو لړ پندونه، نصیحتونه او سپارښتنې را پرېښې دي، چې موږ ټول د دې سپارښتنو په رڼا کې د خپل نېکمرغه ژوند بهیر پر مخ بیایو.

که د دې پندونو په رڼا کې موږ خپله کړنه او د ژوند لوری وټاکو، نو بې له شکه به د یو سوکاله ژوند لرونکي او پخپلو کړنو کې بریالي و اوسو.

دغه پندونه زیاتره زموږ د ستر لارښود حضرت محمدﷺ حدیثونه او یا د نورو حکیمانو او پوهانو له خوا را ته شوې سپارښتنې دي. په دې لوست کې به یې ولولو:

ـ موږ ولې په خپل ژوند کې له پندونو کار اخلو؟

۱ـ یو سړي له رسول اللهﷺ څخه د نصیحت او پند غوښتنه وکړه:
رسول اکرمﷺ ورته و فرمایل:
که درته و وایم منې یې؟
سړي و ویل: هو!
پېغمبرﷺ له درې ځله تېنګار وروسته ورته و ویل:
(د هر کار له پیل څخه مخکې د هغې پایله و سنجوه، که پایله یې درته ښه بربښېده ویې کړه او که نه، نو مه یې کوه.)
په بل ځای کې داسې سپارښتنه کوي:
((هغه چاته و ګورئ چې له تاسو څخه (په ژوندکې) کم او ټیټ وي او هغه چاته مه ګورئ چې له تاسو نه (په ژوندکې) پورته وي. دا کار د دې لپاره ډېر غوره دی، د هغه نعمتونو سپکاوی ونه کړئ، چې تاسو ته اللهﷻ په برخه کړي دي.))

۲ـ د ژبې ساتل په خلکو کې د دنیا د مال او دولت له ساتلو څخه سخت دي.
۳ـ هر څوک چې پخپله ځان ته ارزښت ورکوي، د تواضع لاره یې پرېښې ده.
۴ـ هر شی زکات لري، خو د عقل زکات صبر او د غم زغمل دي.
۵ـ په ټولو کارونو کې درې کاره ډېر سخت دي:
الف: سخاوت په عاجزۍ کې.
ب: زهد او تقوا په پټه سره.
ج: حق ویل د هغه چا په مخ کې چې له هغه څخه وېرېږئ.

۶- هغه څوک چې په دریو کارونو کې د زړه حضور ونه لري، د اللهﷻ د رحمت دروازه یې پر مخ تړلې ده.
الف: د قرآنکریم د تلاوت په وخت کې
ب: د اللهﷻ د ذکر کولو په وخت کې

ج: د لمانځه د اداکولو په وخت کې

د پندونو په اړه د خوشحال خان خټک دا څو یادونې هم ولولئ:

خپل پردي ته د زړه راز خبره مه کړه
د بخښې د ننه ښه دي خپل رختونه
هغه کار چې په نرمۍ تر سره کېږي
څه حاجت چې رساوه شي تر جنګونه
عاقبت په خپل ورغوی په غاښ پرې کا
هر چې کار کا د دښمنو په ورمونه
په خپلوانو باندې دومره خشم مه کړه
چې پردي درځني تښتي په ملکونه
هر چې شرع فرمايي هغه کار کړه
مه عمل کوه په رسم په دودونه
په ځوانۍ کې چې دې کار له لاسه ووځي
په پیرۍ به دې ونه رسي لاسونه
خدای هغه په دواړو کونو دې نمنځلي
چې په ورځ يې عدل و داد په شپه لمونځونه

ملنګ جان هم په خپل شعر کې څو سپارښتنې لري:

ځوانې ښځې ته چې ونه وايې ترور
هغه دم به دې برباد کړي پلار او مور
هر سبا به دروازه کې درته ناست وي
چې وانخلې نادیده سړي نه پور
بې ګناه وهل به خوري ازار به يې ستا وي
که دې ورکړه په بدل کې لور او خور

کـیـنـاسـتـه د هـغـو وکـــړه مـلـنـګ جـانـه
چـې دې سـم وي پـه کـنـدې ورســره زور

عبدالقادر خټک په ګلدسته کې څه ښه وايي:

د خـبـرې هـم آغاز هـم يـې انـجـام وي
پــه خــبــره کــې خــبــره کــا چــې خـــام وي
هر سړی چې روشن رايه صاحب هوش وي
ويـل هـالـه کـا اغـاز چـې نـور خـامـوش وي

د متن لنډيز:

د انسانانو د ژوند تر ټولو غوره او ګټور وخت همدا د تجربو تر لاسه کول دي چې د نورو لپاره د سوکالۍ او هوسايۍ لارې چارې برابروي.

حکيمانو، هوښيارانو او پوهانو د خپلو تجربو په بهير کې خپلو خلکو ته ګټور او سودمن پندونه ويلي دي چې عملي کول يې نېکې پايلې لري.

په واقعيت کې د عالمانو، حکيمانو، د علم او ادب د خاوندانو همدغو ويناوو او سپارښتنو ته پندونه ويل کېږي.

د راز خبرې بايد پټې وساتل شي، هغه کار چې په نرمۍ سلا او مشوره سر ته رسېږي، بايد له جديت نه پکې کار وانه اخستل شي. د لاس غوټه بايد په لاس خلاصه شي، نه دا چې تر خولې پورې ورسېږي. دوست او دښمن يو له بله توپير کړای شي. له شرعي او اسلامي اصولو سره سم خپل کارونه پر مخ يوسو، خپل اولادونه داسې وروزو چې خپل مسؤوليت و پېژني او ناوړه کارونو ته هڅه او هاند ونه کړي. وخت ته په ارزښت قايل شو، هر کار په خپل وخت سر ته ورسوو، د چا په غوره مالۍ، چاپلوسۍ او ظاهري لباس و نه غولېږو، ناوړه دودونه ونه پالو.



## فعالیتونه

۱ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي، د هر پند په اړه دې خبرې وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي، یوه ډله دې په نظم کې راغلي پندونه او بله ډله دې په نثر لیکل شوي پندونه د ځانه سره ولولي، د ډلې استازي دې لنډ مطلب ووایي.

۳ـ څلور تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي، لاندې لغات دې د تختې پر مخ په مناسبو جملو کې وکاروي:

بوخڅه، بهیر، ورمونه، پایله، کړنه، تملق، لوری، کنډه

۴ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي، متضادې کلمې دې په نښه کړي.

۵ـ دوه تنه زده کوونکي دې د لاندې بیت په کنایي مفهوم باندې خبرې وکړي:

عاقبت به خپل ورغوی په غاښ پرې کا
هر چې کار کا د دښمنو په ورمونه

۶ـ زده کوونکي دې په وار د خپلې کورنۍ په اړه خبرې وکړي.

بېلګه: موږ په څخانسور کې اوسېږو، زموږ کورنۍ اته تنه دي: پلار، مور څلور ورونه او دوه خویندې. پلار، مور او مشر ورور موږ ته لازمې لارښوونې کوي.

۷ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، یو تن دې پوښتنه وکړي، بل دې ځواب ووایي.

۸ـ زده کوونکي دې متن ولولي، خپلواکې کلمې (نوم، فعل، ضمیر، قید) دې په ګوته کړي، ودې لیکي او له نورو زده کوونکو سره دې شریک کړي.

۹ـ پنځه تنه زده کوونکي دې په وار راشي او په متن کې دې بېلا بېلې ((ی ګانې)) په ګوته کړي.

۱۰ـ څو تنه زده کوونکي دې د خپل ښوونځي په اړه خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلو لویانو په مرسته په خپلو کتابچو کې څو پندونه ولیکي او د بلې ورځې پښتو مضمون درسي ساعت کې دې تولګیوالو ته و وایي.

په واک چې نـه لـري پـه کـام کـې ژبـه
کـه ګـونـګ شـي ښـه دی پـه لـویـه تـبـه
پـه بـده ژبـه ځـان ځـي، جـهـان ځـي
ایـمـان لا هـم ځـي واوره طـالـبـه
(خوشحال خان خټک)



# ژمنه (وعده)

ښه خوبونه زبات دي. هر يو يې په خپل ځای کې په ټولنه کې د انسان پر درېځ او شخصيت اغېز لري. ښه خويونه سړی درنوي او سپک خويونه سړی سپکوي. اسلام موږ ته د ښو اخلاقو لارښوونه کړې ده. له بدو هغو څخه يې ژغورلي يو. درواغ ويل، د ژمنې سرته نه رسول او ښکنځلې کول د منافقت نښې دي. درواغ سړی خواروي، ښکنځلې د سړي شخصيت ته زيان رسوي او د ژمنې سرته نه رسول په ټولنې کې د انسان حيثيت، وقار او باور راټيټوي. انسان د ټولنيز مخلوق په توګه اړ دی په خپل ځان کې داسې نيک خويونه پيدا او ورروزي چې د نورو په وړاندې د يو بشپړ انسان په توګه د احترام او درناوۍ وړ شي. اسلام د اخلاقو بشپړ دين دی او حضرت محمدﷺ د نيکو اخلاقو د تعميم او بشپړتيا لپاره مبعوث او ګومارل شوی و.

ـ دروغجن انسان ستاسو په نزد څه حيثيت لري؟

وايي چې یوه ورځ عمر بن خطاب د عدالت لپاره د خلکو په منځ کې ناست و. ناڅاپه یو ښکلی او ښایسته ځوان، چې دوو نورو ظاهرا ښایسته ځوانانو له لاسونو نیولی و، خلیفه ته یې راوست. عمر بن خطاب هغو ځوانانو ته وویل: "ځوان خوشې کړئ او ووایئ چې څه کیسه ده؟"

ځوانانو وویل: "موږ دوه ورونه یو. یو بوډا پلار مو درلود. په خپلو خلکو کې په نیکو اخلاقو او د مشرتابه په ټولو صفتونو مشهور و. یوه ورځ د تفریح لپاره خپل یو باغ ته تللی و. هلته دې ځوان وواژه. اوس له تا څخه غواړو چې زموږ په منځ کې د خدای ﷻ حکم جاري کړې."

عمر رضي الله عنه هغه ځوان ته په ترېو تندي وکتل او پوښتنه یې ترې وکړه: "ته څه ځواب لرې؟"

ځوان ډېر زړور او فصیح و. وموسکېد، په ډېره خوږه ژبه وغږېد او د عمر رضي الله عنه ستاینه او د هغه درناوی یې وکړ. ویې ویل: "په خدای قسم چې رښتیا یې وویل. خو زه هم خپله کیسه درته کوم. بیا ستاسې خوښه چې څه حکم کوئ! زه یو کلیوالي عرب یم. وچکالي راغله. زه له خپلې کورنۍ او مال سره دلته راغلم. لاره مې په دې باغونو کې وه. ما اوښان درلودل. ماته ډېر گران وو. د هغوی په ډلې کې د ښه نسل یوه ډېره ښایسته جونگۍ وه. د نورو اوښانو په ډلې کې به داسې برېښېده لکه پاچا چې د رعیت په منځ کې روان وي. جونگۍ ددې ځوانانو د پلار باغ ته مخه کړه. د هغه باغ پر دېوال باندې د یوې ونې څانگه پرته وه. جونگۍ هغې څانگې ته خوله واچوله او پرې یې کړه. ناڅاپه هغه بوډا سړی له باغه راووت. له ډېرې غوسې یې سترگې سرې اوښتې وې. په لاس کې یې یوه ډېره نیولې وه. د زمري په څېر غړومبېده. بیا یې جونگۍ پر ډبرې کلکه وویشته او مړه یې کړه. کله چې مې ولیدل جونگۍ ولویده، په سر کې مې اور بل شو. په هماغه ډبره مې شیخ پر سر وویشته چې جونگۍ یې پرې ویشتلې وه. د ډبرې په لگېدو بوډا سړي چیغې کړې او وروسته مړشو. دا دوه ځوانان راورسېدل، زه یې ونیولم او تاته یې راوستم."

عمر رضي الله عنه وویل: "اوس چې دې په خپلې گناه خوله وخوځوله، نو نشې خلاصېدای او باید قصاص شې."

ځوان وویل: "زه پر هغه شي خوښ یم چې اسلامي شریعت ټاکلی وي. خو زه یو کوچنی ورور لرم. پلار مې له مړینې دمخه هغه ته ډېر مال ورکړی او د هغې د ساتنې دنده یې زما پر اوږو ایښې ده. ماته یې ویلي و و چې دا مال ستا د ورور دی. د هغې ساتنه پر تا فرض ده. ما هغه مال اخیستی او ښخ کړی مې دی. له ما پرته نور هیچا ته د هغې پته نه ده څرګنده. که تاسې اوس زما د وژلو حکم وکړئ، هغه مال به ضایع شي او د هغې د زیان پړه به ستا پرغاړه وي. د اخرت پر ورځ، چې پاک خدایﷻ د بنده ګانو ترمنځ عدالت کوي، هغه کوچنی به ستا غاړې ته لاس واچوي. که ماته درې ورځې مهلت راکړې، نو زه به د هغه کوچني ورور د مال سرپرستي بل چا ته ورکړم او بېرته به تاته راشم."

عمرؓ په فکر کې ډوب شو او خپل سر یې څو شېبې ځوړند ونیو. بیا یې ناستو خلکو ته مخ واړاوه او ویې ویل: "څوک ددې ځوان ضامن کېږي؟" ځوان ناستو خلکو ته وکتل او د هغوی په ډلې کې یې ابوذرؓ ته ګوته ونیوه او ویې ویل: "دا سړی زما ضامن دی." عمرؓ له ابوذرؓ څخه پوښتنه وکړه: "یا ابوذره! ددې ځوان د راستنېدو ضمانت پر غاړې اخلې، که نه؟" ابوذرؓ وویل: "هو، تر درېو ورځو پورې یې ضمانت کوم." عمرؓ، ځوان رخصت کړ.

کله چې د مهلت وخت نژدې شو، د ځوان پته ونه لګېده. عمرؓ له اصحابو سره ناست و. ابوذرؓ هم و. هغه دوه ځوانان په غوسه شول او ویې ویل: "ای ابوذره، زموږ قاتل چېرته دی؟ هغه سړی چې تښتېدلی وي، څنګه به بېرته راشي؟" ابوذرؓ وویل: "په خدایﷻ قسم، که د مهلت وخت پای ته ورسیږي او هغه ځوان رانشي، زه به خپل ضمانت وفا کوم او ځان درته سپارم." عمرؓ وویل: "په خدای قسم، که هغه ځوان وځنډیږي، د شریعت له غوښتنو سره سم به د ابوذرؓ په اړه حکم وکړم."

ددې خبرې په اورېدو د ابوذرؓ په خاطر د حاضرینو په سترګو کې اوښکې راغلې. د غونډې حاضرینو یو تر بله په خبرو پیل وکړ او له ځوانانو څخه یې د دیت (خونبها) غوښتنه وکړه.

ځوانانو د چا خبره ونه منله او له قصاص پرته په بل شي نه راضي کېدل. په دې

وخت کې خلکو د ابوذر رضي الله عنه ارمان کاوه او ژړل یې. ناڅاپه هغه ځوان راښکاره شو او د عمر رضي الله عنه په مخکې ودرېد. په داسې حال کې چې سا و تیګا او په تندي یې خولې روانې وې، په فصیحه ژبه یې پرعمر رضي الله عنه سلام واچاوه.

وروسته یې عمر رضي الله عنه ته وویل: "هغه کوچنی مې پر ترورو وسپاره او د مال ځای ګی مې ورته وښوده. د ژمنې د سرته رسولو لپاره د اوړي په ګرمۍ کې په منډه راغلم."

خلک د ځوان له رښتینولۍ، پر وعدې د هغه د وفا او مرګ ته د راتګ له امله هیښ پاتې شول. ځینو حاضرینو وویل: "څومره ښه کار او څومره ښه ژمنه!" ځوان وویل: "آیا نه پوهیږئ چې له اجل خلاصی نشته. ما پر خپله ژمنه وفا وکړه چې څوک ونه وایي په خلکو کې وفا له منځه تللې ده."

ابوذر رضي الله عنه وویل: "په خدای جل جلاله قسم ای عمره، دا هلک مې نه پېژانده، چې څوک او د کوم ځای دی. تر دې دمخه مې هم لیدلی نه و، خو کله چې یې په حاضرینو کې یوازې ماته مخ راواړاوه، نو ښه راته ونه برېښېده، رد یې کړم. مېړانې مې اجازه رانه کړه، نهیلی یې کړم، چې څوک ونه وایي، مېړانه له نړۍ ورکه شوې ده."

هغه مهال هغو دوو ځوانانو وویل: "موږ د الله جل جلاله د رضا لپاره د خپل پلار وینه دې ځوان ته وبښله، چې څوک ونه وایي احسان په چاکې نشته."

بیا عمر رضي الله عنه هغو دووځوانانو ته مخ واړاوه او ویې ویل: "د پلار خونبها له بیت المال څخه واخلئ."

ځوانانو وویل: "موږ د الله جل جلاله د رضا لپاره هغه ته د خپل پلار وینه وبښله او له هغه تېر شو. د دنیا د مال تمه نه لرو!"

د متن لنډیز:

ښه اونېک اخلاق د انسان ګاڼه ده. په انسان کې داسې یو لړ صفتونه شته چې انساني جوهر یې بولي. صداقت، رښتینولي، په وعده وفا، درواغ نه ویل، مېړانه، پت ساتل، له خیانت ځان لیرې ساتل، نېکه اوخوږه وینا او په سلګونه داسې نور هغه صفتونه دي چې له انسان انسان جوړوي. دروغ ویل په ټولنې کې د انسان وقار راټیټوي. که یو ځل څوک په دروغو مشهور شو، نو بیا یې پر رښتیاوو هم څوک باور نه کوي. یو شمېر اخلاق فردي دي، زيان او ګټه يې يوازې يو فرد ته رسيږي؛ خو يو شمېر نور بيا ټولنيز اړخ لري. د ټولنې بنسټ جوړوي او له ټولنيزو ارزښتونو څخه ګڼل کيږي. وګورئ، په پورته کيسه کې پر ژمنې د يو ځوان وفا څومره ښېګڼې رامنځته کړې، هم يې ځوان له هرو مرو مرګ څخه وژغوره او هم يې انساني جوهر په ګوته کړ. که چېرته له لومړۍ هغې يې اوږې خالي شوې وای او پرې عمل نه وای شوی، نو ټولنيزو ارزښتونو ته يې زيان رساوه.

## فعالیتونه

۱ـ د پورته کیسې پیغام څه شی دی؟ درې تنه زده کوونکي دې هغه د ټولګي په وړاندې و وایي.

۲ـ درې تنه زده کوونکي دې یوځای د ټولګي مخې ته راشي. هر یو دې په وار له هغو درېو دلیلونو څخه د یو په اړه خپل معلومات وړاندې کړي چې له مرګ څخه د هغه ځوان د بچېدو لامل شول.

۳ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او په خپله ژبه دې د پورته کیسې یوه برخه و وایي.

۴_ په یوې ټولنه کې دې د ښو اخلاقو په اړه څو تنه زده کوونکي خپل نظر روښانه کړي.

۵_ زده کوونکي دې پورته کیسه په خپل ټولګي کې تمثیل کړي.

## کورنۍ دنده

پر وعدې وفا څه ګټه لري؟ په دې اړه یوه مقاله ولیکئ او په بله ورځ یې نورو ته واوروئ.

### زده کړه له کوره تر ګوره

وایي: یو دوست د یو عالم د ناروغۍ پر مهال د عیادت لپاره د هغه کور ته ورغی. عالم چې د ځنکدن په حالت کې و، له خپل دوست څخه یې د یوې مسئلې پوښتنه وکړه. دوست یې ورته وویل، ته د ځنکدن په حالت کې یې په مسئله څه کوې؟ عالم ورته وویل: ((دا به ښه وي، چې په دې مسئلې باندې پوه شم او بیا مړ شم.))

ښایي د غلا او درغلۍ ځاله یوه ورځ ویجاړه شي، خو د رښتیا او امانت ماڼۍ ټینګه او پر خپل ځای ولاړه وي.

((حدیث شریف))



# تشـــبیه

که د پښتو شعر ستري او پلنې لمنې ته په ځیر سره وګورو، نو د امیرکروړ له وخت نه تر نن پورې په سلګونو او زرګونو شاعران تېر شوي، شته او وي به.

دغو ټولو نظمونه او شعرونه ویلي. نثرونه یې لیکلي. حتی نثري اوشعري کلیات ترې را پاتې دي. ځینو په لوی لاس په خپلو شعرونو کې بدیعي او بیاني ښکلاوې کارولي دي.

ادبي فنون د همدې ښکلاو و د څېړنې، توضیح او تشریح کولو علم دی.

بدیع ، بیان او معاني د ادبي فنونو یا بیاني علومو اساسي برخې دي.

بدیع فن چې د فصیح او بلیغ کلام له لفظي او معنوي ښایستونو څخه بحث کوي، تاسې په لسم ټولګي کې ولوست.

د شاعرانه تخیل مختلف صورتونه: تشبیه، استعاره، مجاز او کنایه د بیان علم د بحث موضوعات دي، د دوی له جملې څخه (تشبیه) په دې لوست کې در پېژنو.

تاسو کله دوه شیان یو له بله سره ورته کړي دي؟

د یوې معنا د بیانولو لپاره لومړنۍ اسانه، ساده فني لاره چاره تشبیه ده چې په نظم، نثر، شعر او عادي کلام کې ورڅخه کار اخیستل کېږي.

ډېر وختونه له تشبیه څخه موخه د یو شي په ښه ستایلو یا بد ستایلو او بیانولو کې د مبالغې کول وي. یو شاعر د هغې مینې یا کرکې له امله چې له خلکو او شیانو سره یې لري، کوښښ کوي هغوی له خپل هغه موجود حالت څخه زیات یا کم وښيي.

د بېلګې په ډول کله چې یو شاعر د محبوب قد له سرو، رخسار له ګل، غاښونه له مرغلرو، شونډې له لعلونو، د څټو تورو والی له تورې شپې سره ورته ښيي، نو سره له دې چې د خپل محبوب او د هغو شیانو تر منځ ورته والی (مشابهت) پیدا کوي، په حقیقت کې د خپل محبوب او معشوق په ستاینه کې مبالغه کوي او غواړي چې خپله محبوبه تر خپل اصلي حده زیاته ښایسته وښيي.

تر خپل حد څخه زیات د یو شي ښه والي یا بد والي بیانول د مبالغې یو ډول دی چې د تشبیه او ورته والي په صورت کې افاده کیږي.

تشبیه: ورته کولو یا یو شی یا یو څیز د بل په شان کیدو ته وایي یا: په یوه ځانګړې معنا کې د دوو شیانو ګډون ته، په دې شرط چې د دواړو تر منځ یو یا څو ګډ خصوصیتونه موجود وي، ورته کول تشبیه ده.

د مثال په ډول که ووایو چې: (ناپوهي مرګ او پوهه ژوندون دی.)

نو په دې وینا کې ناپوهي او جهالت له مرګ سره، علم او پوهه له ژوندون سره تشبیه یا ورته شوي دي.

یا لکه په لاندې شعر کې:

پـتـنـګ یـم شـمـعې ښـکـلـول دې غـــواړم
کـه څـنـګ دې ډک د سـرو لـمبـو دی ښـه دی

شاعر په دې بیت کې خپل ځان له پتنګ سره تشبیه کړی دی او له شمعې څخه یې هدف خپل هېواد دی چې د اباد ولو او سمسورولو لپاره یې هر راز سربښندنې ته تیار دی.

د شاعر او پتنګ تر منځ د تشبیه وجه یا ګډ خصوصیات مینه، محبت او وفاداري ده.

تشبیه پنځه رکنونه لري: مشبه، مشبه به، د تشبیه وجه، د تشبیه ادات، د تشبیه غرض.

مشبه او مشبه به ته د تشبیه طرفین یا اصلي ارکان هم ویل شوي دي، ځکه چې د تشبیه په صورت کې یې شتون حتمي دی. د دوه نورو (وجه شبه او ادات تشبیه) ذکر او شتون حتمي او اړین نه دی.

۱_ مشبه:

هغه شی چې تشبیه کېږي د مشبه په نوم یادېږي.

یا: مشبه هغه څوک یا شی یا حال دی، چې له بل چا یا شي یا حال سره تشبیه کړای شوی وي.

د بېلګې په ډول:

که و وایو چې: (باران اوري) په دې کلام کې د تشبیه کوم طرف نشته او که و وایو چې: (د غم باران اوري.) دلته د تشبیه طرفین موجود دي.

غم یې له باران سره تشبیه کړی دی.

یا لکه په لاندې بیت کې چې (محبت) له اور سره تشبیه شوی دی:

هېڅ مې نه زده محبت که اور دی دا

په اور سوځم په رضا که زور دی دا

یا لکه په لاندې لنډۍ کې:

زړه مرغلره ده چې مات شي

بیا د لباس په خندا ناخلي کوشیرونه

پورته لنډۍ کې ((زړه)) مشبه دی چې له مرغلرې سره تشبیه شوی دی.

**۲ _ مشبه به:**

له کوم شي سره چې یو شی تشبیه کېږي د مشبه به په نامه یادېږي.

یا: مشبه به هغه څوک یا شی یا حال دی چې د بل چا یا شي یا حال ورته والی او تشبیه له ده سره شوې وي.

لکه: په دې لاندې جمله کې:

(پوهنه د رڼا په څېر ده.) په دې جمله کې (رڼا) مشبه به راغلې ده.

یا لکه د رحمان بابا په لاندې بیت کې:

که حرص درباندې زور شي مرګ درياد کړه
دا علاج دی دغه رنځ لره محکم

رحمان په دې بیت کې ((حرص)) له (رنځ) سره او (مرګ) یې له (علاج) سره تشبیه کړی دی، رنځ او علاج دواړه مشبه به دي، یعنې د نورو شیانو تشبیه له دوی سره شوې ده.

په همدې ډول په لاندې بیت کې چې (مارونه) د (زلفو) لپاره مشبه به دي:

چې خوړلی د یار زلفو منګرو یم
سرګردانه په سراغ د پاړوګر یم

یا لکه په لاندې لنډۍ کې چې ((مرغلرې)) مشبه به او ((خولې)) مشبه دي.

چې مرغلرې ترې شرمېږي
هغه خولې زما د یار پر مخ راځینه

۳_ د تشبیه وجه:

هغه یو یا څو مشترک صفتونه چې د مشبه او مشبه به تر منځ موجود وي، د تشبیه وجه یې بولي. د وجه شبه ذکر په بیت کې کله وي او کله نه.

لکه په لاندې بیت کې:

د بادام په څېر مې زړه سوري سوري شو
چې راپورته په غمزه سترګې بانو کړې

په پورته بیت کې (زړه) مشبه، (بادام) مشبه به، (په څېر) د تشبیه کلمه، (سوري سوري کېدل) یې د تشبیه وجه یا مشترک صفت دی.

د تشبیه وجه ښایي په مشبه به کې تر مشبه زیاته قوي او څرګنده وي.

د رحمان بابا لاندې بیت وګورئ چې د تشبیه د وجهې ذکر پکې لفظاً نه دی شوی:

یا به قند یا به نبات او یا به شهد وي
هر کلام چې له رحمانه شنیده شي

په پورته بیت کې د رحمان (هر کلام) مشبه، (قند، نبات، شهد) درې واړه مشبه بهات دي. (خوږوالی) یې د تشبیه وجه ده، مګر په بیت کې لفظاً نه ده ذکر شوې.

یا لکه په لاندې بیت کې:

که هر څو د بڼو غشي کاږه ولي
یو له نښې د زړه نه درومي خطا

۴_ د تشبیه ادات یا کلمې:

هغه ادات یا کلمې دي چې زیاتره د هغو په واسطه د مشبه او مشبه به تر منځ تشبیه قایمېږي.

د تشبیه ادات دادي:

لکه، په څېر، په شان، غوندې، هغسې، هسې، داسې، څنګه، په دود، که، په رنګ...

لــکــه خــونــد لــري زمــا خـــوږې خــبـرې
پــه شــکــرو کــې هــم نـشـتـه هــسـې خـونـد
(رحمان بابا)

پــه غـــوږو دې زلــفــې هــســې مـعـلـومـیـږي
لــکــه ولـــوېـــږي هــنــدو پــه ســپـیـنـو زرو
(حنان)

چــې رېــبــي مــې بــې صــرفــې د زړګـــي ولــې
کــړې ورو ځـــي دي د یــار کــه لـــور دی دا

چـــې د ســـپـــرلـــي ګـــلـــونـــه ګـــورم
مــا تــه د ګــل پــه شــان جــانــان را یــا دوینــه

په پورته لومړي مثال کې (هسې)، دویم کې (هسې ـ لکه)، درېم کې (که)، څلورم کې (په ـ شان) د تشبیه ادات یا کلمې دي.

۵ـ د تشبیه غرض:

هغه مقصد او مطلب چې له تشبیه څخه اخیستل کېږي، د تشبیه غرض ورته وایي.

یا: د مشبه د حال بیان او ستاینه د تشبیه غرض دی. لکه: ښکلا، ښه والی، بدوالی او نور...

د تشبیه غرض زیاتره مشبه ته راجع کېږي. د بېلګې په ډول:

که و وایو چې: (دا اوبه لکه د شاتو خوږې دي.) په دې جمله کې: (اوبه) مشبه، (شات)

مشبه به، (لکه) د تشبیه ادات، (خوږوالی) یې وجه شبه ده.

او د تشبیه غرض د اوبو د خوږوالي ثابتول دي.

د متن لنډیز:

د شعر و شاعرۍ، د فني ښکلا ټول جهتونه، خوندونه او رنګینۍ، د وینا پټې او ښکاره ښېګڼې د ادبي فنونو د پوهې په واسطه سره ښکاره او په ګوته کولای شو.

بدیع، بیان او معاني د ادبي فنونو یا بیاني علومو اساسي برخې دي.

د بدیع په علم کې د وینا غیر واجب ښکلاوې، د تحسین نښې او ډولونه پېژندل کېږي. بدیعي لفظي او معنوي صنعتونه تر څېړنې لاندې راځي.

بیان هغه اصول او قاعدې بیانوي چې د هغو په واسطه سره یوه معنا په مختلفو عباراتو کې داسې اداکېږي چې یوه نسبتاً بلې ته ډېر واضحه او څرګنده وي. تشبیه، استعاره، مجاز او کنایه یې د بحث اړین موضوعات دي.

یو شی یا حالت له بل شي یا حالت سره ورته کولو ته تشبیه وایي.

مشبه، مشبه به، وجه شبه، د تشبیه ادات او د تشبیه غرض د تشبیه ارکان دي. دوه لومړني ارکانو (مشبه او مشبه به) ته د تشبیه اصلي ارکان وایي او نور یې فرعي دي. اصلي په دې معنا چې په بیت کې یې شتون او ذکر اړین دی.

## فعالیتونه

۱ــ یو تن زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي او تشبیه دې نورو ته وروپېژني.

۲ــ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، یو تن دې د تشبیه د رکنونو نومونه واخلي او بل تن دې تعریف او په یوې بېلګې کې دې وښیي.

۳ـ څلورتنه زده کوونکي دې په وار سره د تختې پر مخ یو یو بیت ولیکي، مشبه، مشبه به، ادات تشبیه او د تشبیه وجه دې پکې وښيي.

۴ـ زده کوونکي دې په څلورو ډلو وویشل شي، هرې ډلې ته دې دنده وسپارل شي، په خپلو تېرو ویل شوو لوستونو کې داسې بیتونه او شعرونه پیدا کړي چې د تشبیه ارکان پکې راغلې وي، د هرې ډلې استازی دې نورو ټولګیوالو ته و وایي.

۵ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه و وایي:

د بیان علم د بحث موضوعات کوم دي؟

تشبیه څه ته وایي؟

د تشبیه ارکان کوم دي؟

د تشبیه ادات کوم دي؟

۶ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار د لوستل شوو شعرونو څخه یو یو بیت په تخته ولیکي، مفهوم دې ټولګیوالو ته و وایي.

۷ـ ښوونکی دې د شاعرانو په شعرونو کې د تشبیه په کارولو او رول باندې په لنډ ډول وغږېږي.

۸ـ هر زده کوونکی دې په وار د خپل ښوونځي په اړه خبرې وکړي. بېلګه:

زه د خوشحال خان د لېسې زده کوونکی یم. زه په خپل ټولګي کې اول نمره یم، د ښوونځي سره ډېره علاقه لرم.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپل درسي کتاب شعرونه ولولي او د تشبیه ارکان دې پکې نښه کړي، د بلې ورځې د پښتو د مضمون په ساعت کې دې نورو ټولګیوالو ته و وایي.



# د تشبیه وېش




د ځینو څېړونکو په اند په اسلامي پېر کې لومړنی سړی، چې د بیان علم په اړه یې څېړنې کړې، هغه ابو عبیده مثنٰی دی. د زوکړې کال یې معلوم نه دی، خو د مړینې کال یې (۲۱۱ هـ.ق.) ښوول شوی دی.

ده د بیان په باب یو کتاب لیکلی چې مجازالقرآن یې بولي. ابو عبیده په دې کتاب کې هغه کلمات را ټول کړي، چې د موضوع په لحاظ په معاني کې استعمال نه لري، بلکې په مجازي معناو کې یې استعمالوي. د بیان لغوي معنا سپړل، څرګندول او په ډاګه کول دي. بیان هغه پوهه ده چې د یوې معنا دلالت په بېلابېلو لارو رانښیي.

ددې علم اصلي موضوعات مجاز او کنایه دي، خو تشبیه له مستعار مجاز سره د تړاو په صورت کې هم ملګرې کېږي.

تشبیه یو داسې ادبي ښایست دی، چې په منظوم کلام کې ښکلا، خوند، کیفیت زیاتوي او د شعري ژبې په کارولو کې ځانګړې ونډه او ارزښت لري.

په تېر لوست کې مو تشبیه او ارکان وپېژندل، اوس به یې د وېش او ډولونو په اړه معلومات ولولئ:

ــ د تشبیه کارول په کلام کې څه ارزښت لري؟

د وينــا يــا د مطلب د ادا ژبه او د شــعر ژبه دوا ړه يو راز نه وي. دشــعر په ژبه کې د مطلب د افادې تر څنګ احســاس او هېجان هم وي، همدا تشبيهات او استعارې دي چې د شعري ژبې په جوړولو کې ونډه لري او د شاعرانه انځورونو د جوړولو مهمې وسيلې ګرځي.

د تشبيه وېش په لاندې ډول شوی دی:

## الف_ د طرفينو د موقعيت په لحاظ:

د مشــبه او مشــبه به د موقعيتونو له مخې تشبيه په مفروقه او ملفوفه تشبيه باندې وېشل کېږي.

مفروقه تشــبيه: هغه ده چې په بيت يا مســره کې مشبه او مشبه به يو بل ته څېرمه يا نږدې واقع شوې وي.

لکه:

خط دې تـور حـرفـونـه، مـخ دې پاڼې د کتاب دي
شـغـل د کـتـاب دې بـل کـتـاب را څـخـه يـوړ

رحمــان بابــا په دې بيت کې د محبوب پــر مخ ((تور خط)) (ږېــره او بريت) له تورو حرفونو سره او ((مخ)) يې د ((کتاب)) له پاڼو سره تشبيه کړی دی.

څرنګه چې مشــبه او مشبه به ســره نژدې واقع شوي دي، نو د طرفينو د موقعيت په لحاظ مفروقه تشبيه ده.

يا لکه په لاندې پښتو لنډۍ کې:

ســـتـــرګـــې ډولـــــــی، بـــاڼـــه پــــرې چـتـر
د جـــانـــان مـــيـــنـــه پـــکـــې نــــاوې ګـرځـومـه

په پورته لنډۍ کې: ((ســترګې)) مشبه، ((ډولۍ)) مشــبه به، ((باڼه)) مشبه، ((چتر))

مشبه به، ((دجانان مینه)) مشبه، ((ناوي)) مشبه به دي.

دا چې مشــبه او مشــبه به یا د تشــبیه طرفین یو بل ته څېرمه راغلي دي، نو مفروقه تشبیه یې بولي.

ملفوفه تشبیه:

که چېرې په یو بیت یا مســره کې څو مشــبه او څو مشبه به داسې راوړل شي چې له مشبه سره مشبه په یو نیم بیتي کې او له مشبه به سره مشبه به په بل نیم بیتي کې راغلي وي، یعنې له مشــبه سره مشــبه به نژدې یا څنګ په څنګ نه وي راغلي؛ ملفوفه تشبیه یې بولي. لکه په لاندې بیت کې:

تــورې زلــفــې شــنــه خــالــونــه، ســـره رخــســار
شــنــه تــوتــیــان دي ســـره ګــلــونــه تــور ښــامــار

په پورته بیت کې: ((زلفې)) مشبه، ((ښامار)) مشبه به، ((توروالی))، (اوږدوالی) یې وجه شبه.

(خالونه) مشبه، (توتیان) مشبه به، ((شینوالی او ښایست)) یې وجه شبه.

((رخسار)) مشبه، ((ګلونه)) مشبه به، ((سوروالی او ښایست)) یې وجه شبه ده.

څرنګه چې مشــبه ګانې په یو نیم بیتي او مشــبه به په بل نیم بیتي کې یعنې سره لرې راغلې دي نو ملفوفه تشبیه یې بولي.

## ب_ د تشبیه وېش د ابتذال او ندرت په لحاظ:

د ابتذال او ندرت په لحاظ تشــبیه په مبتذله او نادره تشبیه باندې وېشل کېږي. نادره تشــبیه هغه تشبیه ده چې شاعرانو کې لږ اســتعمال ولري او یا کوم شاعر نوې پیدا کړې وي.

لکه په دې بیت کې:

چې یې خال په مخ کې وینم حیرانېږم
په جنت کې ولې ږدي عاصي یو گام

په پورته بیت کې (خال) مشبه، (عاصي) مشبه به، (مخ) مشبه، (جنت) مشبه به دی. د ((خال)) او ((عاصي)) تر منځ ((تورو الی)) وجه شبه ده. د (مخ) او (جنت) تر منځ د تشبیه وجه ښایست او سپینوالی دی. څرنگه چې لږ شمېر شاعرانو کارولې ده، نو نادره تشبیه یې بولي.

مبتذله تشبیه: هغه ده چې په شاعرانو کې خورا زیات استعمال ولري.

لکه د ((زلفو)) تشبیه له ((سنبل)) سره یا د ((مخ)) تشبیه له ((گل)) سره چې هر شاعر دا کار کړی دی.

لکه په لاندې بیتو کې:

مخ دې لکه گل صنم زلفې دې سنبل صنم
که هر څو د ښو غشي کاږه ولي بوله نښې د زړه نه درومي خطا

په لومړي بیت کې مخ له گل سره او زلفې له سنبل سره او په دویم بیت کې (باڼه) له (غشو) سره تشبیه شوي دي.

څرنگه چې هر شاعر د غسې تشبیهات کاروي نو ځکه ورته مبتذله تشبیه ویل کېږي.

## ج_ د تشبیه وېش د وجه شبه په لحاظ:

د وجه شبه په لحاظ تشبیه پر مفصله او مجمله باندې وېشل کېږي. مفصله تشبیه هغه ده چې د تشبیه وجه لفظاً په بیت کې ذکر شوي وي.

لکه په دې بیت کې:

د غفلت په خوب ویده خلک یې نه اوري
که حمید ناري وهي لکه جرس

په پورته بیت کې حمید ((خپل ځان)) له ((جرس)) سره تشبیه کړی دی، ((ناري وهل)) يې وجه شبه ده چې لفظاً ذکر ده، نو مفصله تشبیه ده.

مجمله تشبیه: دا هغه تشبیه ده چې د طرفینو تر منځ يې د تشبیه وجه لفظاً نه وي ذکر شوي، لکه په لاندې بیت کې:

مخ دې لکه لمر دی ورته ځیر کتلی نه شم
ځکه يې د مدحې له عهدو وتلی نه شم

عبدالقادر خټک چې د خوشحال خان خټک زوی دی پخپل پورته بیت کې يې د ((محبوب مخ)) له ((لمر)) سره تشبیه کړی دی. د ((مخ)) او ((لمر)) تر منځ د تشبیه وجه چې (ښایست او روښنايي) ده په څرګند ډول په کلام کې ذکر شوې نه ده، نو ځکه يې مجمله تشبیه بولي.

## د_ د تشبیه وېش د اداتو په لحاظ:

د اداتو په لحاظ تشبیه پر مرسله یا مطلقه او مؤکده باندې وېشل کېږي.

مرسله یا مطلقه تشبیه: هغه تشبیه ده چې د تشبیه ادات یا کلمې په بیت کې ذکر وي، لکه په دې بیت کې:

ښامارانو غوندې ګرځي په ګنجونو
نشته هیڅ په زړه کې ډار د تورو زلفو

په دې بیت کې((زلفې)) له ((ښامارانو)) سره تشبیه دي. د زلفو او ښامارانو تر منځ د تشبیه ادات (غوندې) په بیت کې ذکر ده، نو د اداتو د ذکر په لحاظ مرسله یا مطلقه تشبیه ده.

مؤکده تشبیه: هغه تشبیه ده چې د مشبه او مشبه به تر منځ د تشبیه ادات یا کلمې په بیت کې نه وي ذکر شوي.

لکه په دې لاندې بيت کې:

نه به په زور په زاري خلاص شـــي، نه په عقل دانش

دنيـــا دامګاه، ژونـــدون دانه، اجل يې دام ايښـــی دی

د پورته بيت په دويم نيم بيتي کې: (دنيا) له (دامګاه) ســـره (ژوندون) له (دانې) ســـره (اجل) له (دام) سره تشبيه شوی دی، خو د تشبيه د اداتو ذکر پکې نه دی شوی، نو مؤکده تشبيه يې بولي.

تشبيه نور ډېر ډولونه هم لري، خو مهم يې همدغه وو چې دلته در وپېژندل شول.

د متن لنډيز:

تشبيه د شاعرانه انځور د جوړولو يو مهمه وسيله ده، همدا تشبيهات او استعارې دي چې د شعر ژبه او د وينا ژبه سره توپيروي.

تشبيه څو ډول وېش لري: د طرفينو د موقعيت له مخې په ملفوفه او مفروقه، د استعمال له مخې په نادره او مبتذله، د اداتو له مخې په مرسله او مؤکده، د وجه شبه له مخې په مفصله او مجمله تشبيه باندې وېشل کېږي.

د تشـــبيه ځينې نور وېشونه لکه د (عادي او غېر عادي، تسويه او جمع تشبيه، د ماهيت له مخې وېش د طرفينو د بسيطوالي او ترکيب له مخې وېش) هم لري.



## فعاليتونه

۱ـ دوه تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشـــي، د تشـــبيه په وېش دې خبرې وکړي.

۲ـ څو زده کوونکي دې په وار ســـره د تشـــبيه يو يو وېش د تختې پر مخ په مثالونو کې وښيي.

۳ـ زده کوونکي دې په څلورو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د تشبیه د وېش یو چارت ترتیب کړي، د ډلې استازي دې، نورو ټولګیوالو ته وښیي.

۴ـ څو زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي په متن کې د راغلو شعرونو په مفهوم دې خبرې وکړي.

۵ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

په منظوم کلام کې د تشبیه کارول څه ګټه لري؟

د اداتو په لحاظ تشبیه په کومو ډولونو باندې وېشل کېږي؟

د تشبیه وجه که په بیت کې ذکر نه وي، څه ډول تشبیه یې بولي؟

مجمله تشبیه کومې تشبیه ته ویل کېږي؟

۶ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار د تختې پر مخ په شعرونو کې د تشبیه طرفین ونوموي.

۷ـ زده کوونکي دې په وار د پاکوالي په اړه په داسې ډول خبرې وکړي چې تشبیهات پکې وکاروي.

۸ـ دوه تنه زده کوونکي دې د لوست لنډیز ووایي.




هر زده کونکی دې په کور کې د یو شاعر شعرونه ولولي، د تشبیه د هر وېش په اړوند دې مثالونه پیدا او د بلې ورځې د پښتو مضمون په ساعت کې دې ټولګیوالو ته ولولي.

زده کوونکی دې په لاندې بیتونو کې مشبه، مشبه به، وجه شبه او د تشبیه توري ولټوي او تشریح دې یې کړي:

شونډې دي یاقوت دي مرغلرې سپین غاښونه
سرتر پایه درست د پاچاهانو خزانه یې
چې بلا یې د قامت راته ښکاره شوه
ګویا پاخېده بلا د قیامت
څو به شمېرم زه غمونه د هجران
هومره ډېر دي لکه رېګ د بیابان
چې یې خال په مخ کې وینم حیرانېږم
په جنت کې ولې ږدي عاصي یو ګام
دا څه قد دی دا څه سترګې دا څه مخ دی
داڅه سروه څه نرګس دا څه ګلشن دی
لکه باد صبا راشي ژر ګذر کا
ما خوشحال چې ازمېیلې دی میثاق ستا
که د زلفو مار یې وخوري عاشق ګرم دی
چې یې لاس په اژدها باندې کښېښی
ښاپیرۍ چې لیده نشي سبب دادی
بیا فنا شوې لکه ګل د ګلستان
نرګس کوږ ګوري له شرمه
ستا د سترګو په څواب
د جنت حورې که ګوري ستا ومخ ته
نور به واچوي له مخه نقابونه



# نشه يي توکي

د نشه يي توکو کارونه د انسان بدن ته ډېر زيان رسوي. د نشه يي توکو لېږد رالېږد او قاچاق ديني، ملي، اجتماعي او انساني جرم او جنايت دی. خلکوته زيان رسول له همدغه ځايه پيلېږي.

څوک چې پر نشه يي توکو اخته وي، خلک ورته په سپکه سترگه گوري. د هو سا ژوند څښتن نه وي. د کورنۍ او ټولنې د اوږ و باروي.نشه يي توکي ډول ډول دي، په دې لوست کې به يې په اړه ځينې څرگندونې ولولو:

پر نشې د اخته شخص د ژوند په اړه مو په ذهن کې څه درگرځي؟

شک نشته چې څښتن تعالی هېڅ شی خوشې نه دی پیدا کړی، خو دا موږ یو چې له هغوی ناسمه ګټه اخلو. د نشه يي توکو کارول بدن او روغتیا ته زیان رسوي او باید ځانونه ترې په کلکه وژغورو.

د نشه يي توکو په کارونې د بدن د کار او فعالیت ځواک کمزوری کېږي. پر نشه يي توکو روږدي کسان نه د دنیا چارې په سمه توګه سمبالولی شي او نه د اخرت، نه خپل حقونه پېژني او نه هم د نورو. دغه وګړي په ټولنه کې د خپلوۍ او دوستۍ اړیکې هم په مناسبه توګه پاللی او ساتلی نه شي.

که په ظاهره وګورو د بنګو بوټي ډېر ښکلي دي، خو دا ښکلي ماران په باطن او د ننه کې له زهرو ډک دي. تنکي او ښایسته ځوانان بد رنګوي او د ځوانۍ د ښایست او د ښکلا د بهار ګلونه يې مړاوي کوي، رژوي يې او له خاورو سره يې خاورې کوي. نشه يي توکي ډېر ډولونه لري، همداسې يې استعمال او کارونه هم ډول ډول ده.

یو ډول هغه نشه يي توکي دي چې د سګرټ، چلم، نیچې او نورو ډولونو په دود استعمالېږي. یو له دې توکو څخه تمباکو دي چې ددې ټولو بدو عملونو په سر کې راځي. ځوانان لومړی ځل تمباکو لوګی کوي، نسوار اچوي، چلم یا سګرټ څکوي، ورو ورو د تمباکو چلم يې د چرسو په چلم او سګرټ يې په سګرټې بدلېږي.

همداسې ځینې تریاک خپلوي او هیروینو ته ځان سپاري. په دې ډول د بدو اعتیادونو لړۍ له تمباکو څخه پیلېږي.د تمباکو لوګی معده کمزورې کوي، د التهاب سبب يې ګرځي، اشتها کموي، ځیګر خرابوي، عصبي نظام کې سستي او کمزوري راولي او نورو راز راز ناروغیو ته زمینه برابروي. په همدې ډول چرس هم یو زیان رسوونکی نشه يي توکی دی. بل هغه نشه يي توکي دي چې د خولې له لارې استعمالېږي. لکه تریاک، بنګ، شراب چې تر هر څه د مخه د معدې او بیا د بدن د نورو غړو د ناروغیو سبب ګرځي.

دریم هغه نشه يي توکي دي چې د پېچکارۍ له لارې وجود ته د اخلېږي. دا ډول نشه يي توکي د انسان د پوستکي، وینې، اعصابو او د زړه د ناروغۍ د انتقال لوی عامل

ګرځي.

څلورم هغه نشه يي توکي دي چې د پزې له لارې استعمالېږي، لکه د پزې نسوار او نور چې د پزې د سوري کېدو او د دماغ د نازکو رګونو د بندېدو په سبب د انسان د مړينې لامل کېږي. تاسې ته به جوته شوي وي چې نشه يان يا په نشه يي توکو روږدي کسان کوښښ کوي د خلکو، کور او کلي څخه لرې واوسي. دوی د کارکولو توان له لاسه ورکوي، غلاوې کوي، دروغ وايي او د نشه يي توکو لپاره ډول ډول جنايتونو ته لاس اچوي. په پورتني اعمالو د خپلې کورنۍ دوستانو او ټولنې په وړاندې باور او اعتبار له لاسه ورکوي، په ژوندکې سپک بې وقاره او رټلي وي.

ددې لپاره چې ځان مو له پورتنيو ناروغيو او ناوړه پېښو څخه ژغورلی وي بايد د ټولو نشه يي توکو له کارونې څخه په کلکه ډډه وکړو. ددغو توکو په زيانونو خلک وپوهو و چې له استعمال او کاروبار څخه يې ځان وژغوري.

کوم کسان چې پرې روږدي دي د هغوی د خلاصون لپاره دې هر اړخيزې ممکنې هلې ځلې وشي. د خير په دغه کار به مو دنياوي او اخروي نېکمرغۍ په برخه شي او موږ به د نشې له اپت او زيان څخه د ژغورلې ټولنې خاوندان شو.

د متن لنډيز:

د نشه يي توکو کارول د انسان پر روغتيا او ژوند باندې ناوړه اغېز کوي.

په نشه يي توکو روږدي کسان د خپلې کورنۍ او ټولنې د اوږو باروي. نشه يان د کارکولو توان نه لري، د خپل نشه يي توکو د لاس ته راوړلو لپاره ناوړه اعمالوته مخه کوي، ژوند يې سپک، بې وقاره او رټلی وي، هر څوک ورنه کرکه کوي.



## فعالیتونه

۱_ دوه تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي، د نشه يي توکو نومونه دې واخلي.

۲_ درې تنه زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخی ته راشي د نشه يي توکو د زيانونو په اړه دې خبرې وکړي.

۳_ زده کوونکي دې په څلورو ډلو وويشل شي، هره ډله دې د نشه يي توکو زيانونه لست او بيا دې په وار سره د هرې ډلې مشر د خپلې ډلې په استازيتوب هغه د نورو په وړاندې ولولي.

۴_ د متن له لوستلو څخه مو څه مفهوم واخيست؟ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګيوالو په مخکې خبرې پرې وکړي.

۵_ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه پر نشې باندې د روږدو کسانو (د نشه يانو) د خراب ژوند په هکله خبرې وکړي.

۶_ درې تنه زده کوونکي دې په نشه يي توکو د روږدو کسانو په رول او يو تن دې دوی ته د نصيحت کوونکي رول په غاړه واخلي، د دوی د ژوند ناوړه صحنه دې تمثيل کړي.

۷_ زده کوونکي دې په وار د ټولګي په وړاندې لاندې پوښتنوته ځوابونه ووايي او د تختې پر مخ دې د پاراګراف په شکل وليکي:

- نشه يان ولې غلاوې کوي؟
- نشه يان ولې د خپلې کورنۍ او دوستانو په وړاندې خپل اعتبار له لاسه ورکوي؟

- نشه يان ولې د خپلې کورنۍ او ټولنې د اوږو باروي؟
- نشه يان ولې سپک او بې وقاره ژوند لري؟
- د اسلام سپېڅلي دين ولې نشه يي توکي منعه کړي دي؟
- څنگه کولای شئ ځوانان له نشې څخه وژغورئ؟

۸ـ زده کوونکي دې لاندې کيسه ولولي او بيا دې په وارسره زده کوونکي خپل نظر څرگند کړي:

وايي چې په پخوا زمانو کې يوه سړي، چې کړه وړه يې خورا ښه وو، له چا نه يې يو وار نسوار وغوښتل.

هغه ورته په ډېره حېرانۍ وويل: نسوار هم کوې؟

- هو! چې چلم نه وي نو نسوار اچوم.
- او هو! چلم هم څکې؟
- بلې! چې غټ چلم برابر نه شي بيا، نو د تمباکو په چلم د زړه تسل کوم.
- دا ته چرس هم څکې؟
- چې ترياک پيدا نه کړم بيا، نو په چرسو ساعت تېروم.
- عجيبه ده! ته د ترياکو عملي هم يې؟
- نو څه وکړو؟ چې شراب پيدا نه شي بيا، نو په ترياکو گوزاره کوو... .



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلو مشرانو په مرسته د نشه يي توکو زيانونه په څو کرښو کې وليکي او بيا دې د بلې ورځې په پښتو درسي ساعت کې خپلو ټولگيوالو ته ووايي.

## د نشه يي توکو زيانونه:

د اسلام پاك دين نشه يي توكي ناروا ګڼي، ځکه چې د انسان روغتيا ته خورا زيات زيانونه لري او انساني ټولنه له تباهۍ سره مخامخ کوي. روږدي کسان په کورنۍ او ټولنه کې هيڅ قدر او ارزښت نه لري او له ټولنې څخه جلا شوي وي.

د نشه يي توکو استعمال خورا زيات ځاني، روحي، ټولنيز، اقتصادي او اخروي زيانونه لري چې موږ يې ځينو زيانونو ته په لاندې ډول ګوته نيسو:

۱ـ د بدن دفاعي سيستم کمزورى کوي،

۲ـ د مرکزي اعصابو د سيستم فعاليتونه کمزوري کوي،

۳ـ د زړه ټکان زياتوي،

۴ـ د ستوني او سږو سرطان پيدا کوي،

۵ـ د باصرې(۱)، شامې(۲) او ذايقې(۳) حسونه کمزوري کوي،

۶ـ د وينې فشار زياتوي،

۷ـ د وينې کلسترول(۴) زياتوي،

۸ـ د زړه د ناڅاپي دريدلو (سکتې) لامل کيږي،

۹ـ په معتاد سړي کې لټي او کمزورتيا را منځته کوي،

۱۰ـ په تنفسي سيستم کې ګډوډي رامنځته کوي،

۱۱ـ روحي ګډوډي، (سټريا، پريشاني، ګوښه توب، په ځان باندي نه اعتماد، نهيلي... .) راولي.

# پېژند پاڼه
# (خبرې اترې)



زموږ د هېواد هر اوسېدونکی (کوچنی، ځوان، زوړ) نارینه او ښځینه باید د تابعیت تذکره یا پېژند پاڼه ولري. په پېژند پاڼه کې د اړوند شخص ټولې ځانګړنې لیکل شوي وي. نوم، د پلار نوم، د نیکه نوم، د زېږېدلو نېټه، اصلي استوګنځای، مدني حالت، نور ټول کوايف په پيژند پاڼه کې لیکل کېږي. دا پيژندپاڼه د هر ځای اوسېدونکو ته د خپلې ولسوالۍ او یا ولایت له خوا ورکول کېږي.

کله چې یوه کورنۍ و غواړي خپل ماشوم په ښوونځي کې شامل کړي، لومړی باید ماشوم ته د تابعیت تذکره واخلي او بیا یې په ښوونځي کې د داخلیدو لپاره د ښوونځي ادارې ته مراجعه وکړي.

په دې لوست کې په همدې اړه خبرې اترې لرو.

د هېواد د تابعیت د تذکرې لرل څه معنا او څه ګټې لري؟

افغانستان د ټولو افغانانو ګډ کور دی. په دې کور کې بېلا بېل قومونه يو ځای ژوند کوي. هغوی ګډ تاريخ، فرهنګ، دودونه او ملي وياړنې لري. دا قومونه په ګڼو سيمو، کلو، ولسواليو او ولايتونو کې مېشته دي. وګړي يې يو له بله سره ورونه او تر يوه ملي بېرغ لاندې را ټول دي. همدا تر يوه بېرغ لاندې اوسېدونکي وګړي د يوه هېواد نفوس جوړوي.

د اړتيا په وخت کې د هېواد وګړي د خپلې خاورې او هېواد له ملي نواميسو او ځمکنۍ بشپړتيا څخه په ګډه ساتنه او دفاع کوي.

د يوه هېواد نفوس هغه انساني ګروپونه يا د وګړو مجموعه ده چې په يوه وخت کې په يوه مستقيمه او ټاکلې سيمه کې اوسي. دغه ټاکلې سيمه، کلی، ولسوالي، ولايت او ټول هېواد دی.

د يو هېواد ټول اوسېدونکي د هغه هېواد نفوس بلل کېږي، نو د هېواد د هر اصلي اوسېدونکي نوم بايد د نفوسو د احوال په څانګه کې ثبت وي. دا کار هاله شونی دی چې د هېواد ټول اوسېدونکي لوی او واړه، نر او ښځې د تابعيت تذکره يا پېژند پاڼه واخلي.

لومړۍ محاوره: (بريالی او مليار)

بريالی: مليار ه وروه! السلام عليکم، ستړی مه شې.

مليار: وعليکم السلام، بریالیه وروره.

بريالی: خير خو دی، چېرته ځئ؟

مليار: ځم چې ورور مې په ښوونځي کې داخل کړم.

بريالی: مليار جانه، ستا ورور تذکره لري؟

مليار: نه، تر اوسه مو ورته تذکره نه ده اخستې.

بريالی: له تذکرې پرته خو يې په ښوونځي کې نه شاملوي.

مليار: ولې؟

بريالی: ځکه چې په تذکره کې د يو چا ټول کوايف: (نوم، د پلار نوم، د نيکه نوم، کلی،

ولسوالي، د زوکړې نېټه) ليکلي وي.

ملیار: بریالی جانه! د ورور نوم د پلار نوم او د زېږېدو نېټه به زه ورته ووایم.

بریالی: نه داسې نه ده، د ښوونځي سر ښوونکی د تذکرې له مخې کوچنیان شاملوي.

ملیار: ستا سره دې خدایﷻ ډېر ښه وکړي؛ ښه شو چې پوه دې کړم.

بریالی: اوس خو مې په دې پوه کړه چې تذکره څېرته او څنګه اخستل کېږي؟

ملیار: له ورور سره دې یو ځای خپلې ولسوالۍ ته ورشه، خپله یا د خپل پلار تذکره دې هم له ځان سره یوسه.

بریالی: بیا څه وکړم؟

ملیار: یو غوښتنلیک د احصایې د آمریت له حکم سره سم د کلي په مشر یا ملک باندې تصدیق کړه.

بریالی: بیا څه وکړم؟

ملیار: نوره لارښوونه به درته د احصایې په آمریت کې وکړي.

دویمه محاوره: (حلیمه، زرغونه)

حلیمه: سلام او نېکې هیلې، زرغونې ستړې مه شې،

زرغونه: وعلیکم السلام

حلیمه: چېرته ځې؟

زرغونه: نن سبا ښوونځي پېلېږي، غم چې خور مې په ښوونځي کې شامله کړم.

حلیمه: ستا خور کوچنۍ ښکاري، د ښوونځي په منګ به نه وي؟

زرغونه: هغه هسې کوچنۍ ښکاري، که نه په تذکره کې اووه کلنه ده.

حلیمه: تاسو نجونو ته هم تذکرې اخستې دي؟

زرغونه: حلیمې خورې، دا خو کومه د حیرانتیا خبره نه ده. زموږ په کورنۍ کې نارینه او ښځو ټولو تذکرې اخستې دي.

حلیمه: نجونو ته د تذکرې اخستلو کومه اړتیا نشته.

زرغونه: داسې نه ده، تذکره د نارینه او ښځینه دواړو لپاره اړینه ده.

حلیمه: زموږ په کورنۍ کې خو یوازې نارینه تذکرې لري. زه او خویندې مې یوه هم تذکره نه لرو.

زرغونه: اوس هغه وخت نه دی، چې یوازې نارینه ګانو به تذکرې اخیستې، هغه به هم په ډېر مشکل د تذکرې اخستلو ته چمتو کېدل، تذکره خو زموږ افغاني هویت ثابتوي.

حلیمه: زرغونې خورې، دا خو دې ډېره سمه خبره وکړه، موږ هم تذکرې اخلو.

زرغونه: ستا دې خدای ﷻ مل شي، زه ځم چې خپله خور په ښوونځي کې شامله کړم.

دریمه محاوره: (تره او وراره)

وراره: السلام علیکم کاکا جانه!

تره: وعلیکم السلام، وراره ګله! څنګه یې؟

وراره: ښه یم کاکا. ته څنګه یې، چېرته روان یې؟

تره: ځم، دې ماشومانو ته تذکرې اخلم.

وراره: کاکا جانه! تذکرې چېرته اخیستل کېږي؟

تره: تذکرې خو په ولسوالۍ کې اخستل کېږي او د تذکرې اخستلو پر مهال باید تذکره اخستونکی حاضر وي.

وراره: ولې کاکا جانه، په غیاب کې څوک چاته تذکره نشي اخستلای؟

تره: نه زویکه! په تذکره کې خو په شهرت سربېره د تذکره اخستونکي عمر هم ټاکل کېږي.

وراره: تذکره ولې اړینه ده؟

تره: تذکره خو د هر چا د پېژندنې پاڼه ده، هر چېرته او هر وخت په کارېږي، په ښوونځي کې د شمول لپاره هم.

وراره: کله چې دې اولادونو ته تذکره واخیسته بیا څه کوې؟

تره: اشک او ملالۍ ښوونځي کې شاملوم.

وراره: ډېره ښه ده، کاکا جانه، په خیر لاړ شې. دا کار ژر وکړه چې زما د ښوونځي

ملگري پیدا شي.

تره: محموده زويه! دادی تذکرې مې واخيستې، اوس را ته ووايه چې اڅک او ملالی په کوم ښوونځي کې داخل کړم؟

محمود: کاکا جانه، د سید جمال الدين افغان په تجربوي ښوونځي کې يې داخل کړه، زما سره به یو ځای ښوونځي ته ځي. بله دا چې هلته د نجونو او هلکانو ټولګي سره جلا دي

کاکا: دوی خو له ژبې سره نا بلده دي.

محمود: کاکا جانه! زموږ په ښوونځي کې زده کوونکو ته په خپله مورنۍ ژبه زده کړه ورکول کېږي.

کاکا: چې داسې ده، دا دی همدا اوس د ښوونځي له سر ښوونکي سره ګورم.

د متن لنډيز:

افغانستان زموږ ګډ کور دی. په دې کور کې ګڼ قومونه سره يو ځای ژوند کوي. دا قومونه په ګڼو سیمو، کليو، ولسواليو او ولايتونو کې مېشته دي. ټول يو له بله سره ورونه او د یو هېواد نفوس جوړوي.

د افغان هېواد هر اوسېدونکی باید د خپل هيواد د تابعيت پېژند پاڼه ولري. په همدغې تذکرې او پېژند پاڼې سره د يو چا اصلي هويت ثابتېږي.

د يوې سيمې اوسېدونکو ته، تذکرې او پېژند پاڼې د اړوندې ولسوالی او ولايت له خوا ورکول کېږي. د کورنۍ مشر باید د خپلې کورنۍ غړو ته تذکرې واخلي، چې نومونه يې د احصايې په دفتر کې ثبت او د هغې له مخې د هېواد د نفوسو سمه شمېره معلومه شي.



## فعالیتونه

۱ـ یو یو زده کوونکی دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او د خپل ځنګ ملګری دې معرفي کړي.

۲ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او لاندې خبرې اترې دې تکرار کړي:

بارک: خوازکه ستړې مه شې، چېرته ځې؟

خوازک: خوار مه شې بارکه! د ناحیې دفتر ته ځم.

بارک: د ناحیې دفتر ته د څه لپاره ځې؟

خوازک: کوچني ورور ته مې پېژند پاڼه اخلم.

۳ـ څلور تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي، د پېژند پاڼې د اړتیا په اړه دې خبرې وکړي.

۴ـ زده کوونکي دې لاندې مفردو نومونو ته د جمعې بڼې په پنسل ولیکي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱ـ نجلۍ | ۲ـ تره | ۳ـ تذکره | ۴ـ وراره |
| ۵ـ ښوونځی | ۶ـ خبره | ۷ـ وخت | ۸ـ کلی |
| ۹ـ ته | ۱۰ـ ولایت | | |

۵ـ څو تنه زده کوونکي دې د تختې پر مخ لاندې لغات په جملو کې استعمال کړي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱ـ ځنګ | ۲ـ ګڼ | ۳ـ اړتیا | ۴ـ پېژند پاڼه |
| ۵ـ اړین | ۶ـ جلا | ۷ـ خوېندې | ۸ـ مهال |

۶ـ دوه تنه زده کوونکي دې د درس لنډ مطلب بیان کړي.



## کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې د خپل چاپېریال په اړوند د خبرو اترو په شکل یوه مرکه ترتیب کړي او د بلې ورځې د پښتو مضمون په ساعت کې دې ووایي.



# د پښتو د نثر مخينه (تاريخچه)

د هرې ژبې ادب به هرو مرو يا په نثر وي يا په نظم.

پښتو ژبه هم له دې ادبي نعمت څخه برخمنه ده، هم د نثر تاريخ لري هم د نظم. نثر او نظم دواړه د مفکورو او مفاهيمو د لېږدولو وسيلې دي.

نثرد نظم په پرتله ډېرکارول کېږي، لامل يې د هغې اساني ده.

ليکونکي او ويونکي کولای شي هر ډول پېچلي موضوعات په څرګنده ژبه په نثر کې بيان کړي. په دې لوست کې به د پښتو ژبې د نثر تاريخ په اړه معلومات ولولئ.

ـ نثر او نظم څه توپير لري؟

د ادبپوهانو په نظر نثر یوه عربي کلمه ده، په لغت کې شیندلو او تیتولو ته وایي، اصطلاحاً هغه وینا یا معنا داره لیکنه ده، چې له وزن، قافیې او ردیف څخه أزاده وي.

جوته ده چې د ژبې اساس په نثر ایښودل شوی دی، خو د لیکني اثارو له مخې د نظم تاریخ تر نثر لرغونی دی.

د لیک له پیدا کېدو د مخه په حافظه کې د یو شمېر موضوعګانو ساتل د نثر په پرتله په نظم کې اسانه وو. دا خبره نه یوازې په پښتو او دري کې ریښتینې ده، بلکې د نړۍ ټولې ژبې همداسې دي.

د اریایي ولس شاعرانو به تل خپل دیني، ټولنیز، جنګي او حماسي اشعار او موضوعګانې په منظوم ډول لیکلې.

پښتو هم یوه لرغونې اریایي ژبه ده، د نظم تاریخ یې تر نثر لرغونی دی، یعنې د لاس ته راغلو بېلګو له مخې یې د نظم پیل په ۱۳۹هـ کې د امیر کروړ له یو نظم شوی دی. کېدای شي پښتو نظم تر دې هم لرغونی وي.

د پښتو ژبې لومړنی نثر د محمد هاشم سروانې کتاب د (سالو وږمه) دی.

دا کتاب ابو محمد هاشم ابن زید سروانې په دریمه هجري پېړۍ کې د عربي ژبې د فصاحت او بلاغت په باب کښلی، خو له بده مرغه ددغه کتاب کومه نمونه په لاس کې نشته.

له ابو محمد هاشم نه وروسته د پښتو په نثر لیکونکو کې، چې د چا نامه یادولای شو، هغه د بارک خان صابزي ماکو زوی سلیمان ماکو دی.

سلیمان ماکو تر شعر څخه په نثر ښې لیکنې کولای شوې. دی یو ګرځنده سړی و. د پښتونخوا په ګنو علاقو ګرځېدلی و. د خپلې زمانې مشهور اولیاء، روحاني او ادبي کسان یې لیدلي وو. د دغو کسانو احوال، وینا او اشعار یې په (تذکرة الاولیاء) نومي اثر کې را غونډ کړي.

د پښتو نثر تر لاسه شوې نمونه په اوومې هجرې پېړۍ کې د سلیمان ماکو ((تذکرة الاولیاء)) د کتاب یو څو پاڼې دي.

د تذکرة الاولیاء نثر د پښتو خپل طبیعي نثر بللی شو چې له محاورې نه ډېر لرې نه دی او د عربي او دري اغېز پرې لږ دی.

تر دې را وروسته په لسمه پېړۍ کې د پښتو نثر دوه بهیرونه را منځته کېږي.

یو د مسجع نثر را منځته کېدل دي چې د پښتنو ملي، سیاسي تصوفي او ادبي مشر بایزید روښان (۹۲۶_۹۸۵هـ.ق.) یې بنسټ کېښود او خپل کتاب خیرالبیان یې پرې وکښو.

بل د مسجع او متکلف نثر له را منځته کولو سره سره د پښتو طبیعي او روان نثر هم دوام درلود، چې د بایزید روښان مرید، ارزاني په خپلو آثارو کې روان نثر لیکلو ته دوام ورکړ او دمسجع نثر لاره یې خپله نه کړه.

تر دوی وروسته د خوشحال بابا نثري لیکنې ته را رسېږو.

له زرمې هجري پېړۍ نه وروسته د پښتو نثر لمن پراخه شوې ده او هر ډول مضامین او کتابونه پکې شته. د نثر په لیکدود کې هم زیات تغییر راغلی دی او د ساده نثر رواج بیا قوت موندلی دی. د دې دورې لوی علمبردار او لارښود خوشحال خان خټک دی.

خوشحال خان خټک پښتو نثر په نوي قوت او ځواک لیکي، موضوعي تنوع ورکوي، رواني او ښکلا یې زیاتېږي او د یو روان نثر بنسټ ږدي.

دستارنامه د خوشحال یو نثري اثر دی، نثر یې تر ډېره حده روان او ساده دی، جملې یې لنډې لنډې دي، سجع پکې ډېره نشته. د پښتو نثر په دغه دوره کې د خوشحال خټک او د خټکو دکورنۍ لویه کارنامه دا ده چې د پښتو نثر یې په رښتیا نثر کړو، په نثر کې یې خوږوالی، رواني او ساده ګي راوسته.

نو ویلی شو چې د خوشحال خټک نثر د پښتو د اوسني نثر چې پرمختیایي پړاو ونه یې وهلي د بنسټ پخه خښته ده.

د پښتو نثر اوسنۍ دوره چې له (۱۳۰۰هـ.ل.) څخه را شروع کېږي او تر اوسه پورې رارسېږي د پښتو نثر د ښه توب، ډېر والي، نوښت او پراختیا له پلوه بډایه دوره ده.

د پښتو نثر په دې دوره کې د شکل او موضوع له پلوه پوره بدلون او توپیر راغلی دی،

د نوې زمانې نوي فکرونه او خيالونه، بديعي او هنري نثرونه او هر ډول موضوعګانې په دې دوره کې د نثر په قالب کې ځای شوي او د پښتو نثر دنيا يې رنګينه کړې ده.

د دې دورې د لومړۍ برخې د نوميالیو لیکوالانو څخه، مولوي احمد، منشي احمد جان او قاضي ميراحمد شاه رضواني يادولی شو، چې د پښتو په نثر کې د يو نوي سبک او ليک ډول اساس ايښی دی. دوی د پښتو نثر د ليکلو ډول د ولس له محاورې سره نژدې کړ. پښتو متلونه او خوږې محاورې او اصطلاحګانې په پښتو نثر کې د دوی ښه هنر نمايي ده. مولوي احمد د (ګنج پښتو) په نامه په نثر يو کتاب وليکه.

قاضي مير احمد شاه رضواني د ((بهارستان افغاني)) او ((شکرستان افغاني)) په نامه کتابونه چې زياتره درسي بڼه لري، وليکل. منشي احمد جان د ((هغه دغه)) د ((قصه خانی ګپ)) په ليکلو د پښتو د نثر خوند يو په دوه زيات کړ. په افغانستان کې ددې دورې د نثر پاخه ليکونکي: مولوي عبدالواسع کندهاری، مولوي صالح محمد، عبدالهادي داوي، محمد ګل مومند او نور د يادولو وړ دي. د پښتو د معاصر او اوسني نثر د سرلارو ليکوالو په ډله کې د پوهاند عبدالحی حبيبي، قيام الدين خادم، ګل پاچا الفت، عبدالرؤوف بېنوا، پوهاند صديق الله رښتين، پوهاند عبدالشکور رشاد او نورو نومونه هم د يادولو وړ دي. دوی نه يوازې ډېر اثرونه ليکلي، بلکې د پښتو د ښه او سپېڅلي نثر لپاره يې هم ډېر خدمت کړی دی. د بېلګې په ډول د خادم له نثري اثارو څخه ((خيالي دنيا))، ((پښتو نولي))، ((نوی ژوندون))، د ارواښاد الفت له اثارو څخه ((بله ډيوه))، ((غوره نثرونه)) ((لوړ خيالونه او ژور فکرونه))، د ارواښاد بېنوا ((د زړه خواله))، او د پوهاند رښتين له نثري اثارو څخه ((هند سفر))، ((د فکر پلوشې)) او نور يادولای شو.

د متن لنډيز:

د ژبې اساس په نثر ايښودل شوی دی، مگر په حافظه کې د ساتلو لپاره نظم تر نثر اسانه و. په پښتو ژبه کې د ليکني اثارو له مخې د نظم تاريخ تر نثر لرغونی دی.

د پښتو ژبې لومړنی نثر د ابو محمد هاشم کتاب د ((سالو وږمه)) دی، خو له بده مرغه ددغه کتاب د نثر کومه نمونه په لاس کې نشته.

د ابو محمد هاشم د سالو وږمې نه ورسته په (۶۱۲هـ.ق.) کې د سليمان ماکو د تذکرة الاولياء څو تر لاسه شوې پاڼې دي چې د پښتو د لومړني دور نثر نمونې پکې خوندي شوې دي.

د دې څو پاڼو تر لوستلو او څېړنو وروسته بايد و ويل شي چې دغه ډېر قوي نثر دی او دا ترې جوتېږي چې تر دې د مخه دې هم په پښتو کې د نثر زيات کتابونه ليکل شوي وي.

په لسمه هجري پېړۍ کې په پښتو ادب کې مسجع او مصنوع نثر را منځته شو چې علمبردار يې بايزيد روښان و او خپل کتاب خيرالبيان يې په همدې نثر وليکه. له زرمې هجري پيړۍ نه وروسته د پښتو نثر لمن ډېره پراخه شوې ده، هر ډول مضامين او کتابونه پکې ليکل شوي دي، په ليکدود کې يې هم زيات تغيير راغلي دي، د مسجع نثر پر ځای د ساده نثر رواج بيا قوت موندلی دی. د دې دورې لوی علمبردار او لارښود خوشحال ختک دی. ددغې دورې د نثر مشهور کتابونه دستار نامه، بياض، گلدسته، تاريخ مرصع او نور دي. د پښتو معاصر نثر چې له ۱۳۰۰هـ. څخه پېلېږي او تر ننه را رسېږي، د نثر د دې دورې بنسټ ايښودونکو څخه مولوي احمد، منشي احمد جان، قاضي مير احمد شاه رضواني او نور دي. په افغانستان کې د معاصر نثر له سرلارو څخه د پوهاند حبيبي، پوهاند رښتين، قيام الدين خادم، گل پاچا الفت، بېنوا، پوهاند رشاد او نورو نومونه د يادولو وړ دي.



## فعالیتونه

۱ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د پښتو نثر د تاریخ په هکله خپل نظر و وایي.

۲ـ زده کوونکي دې په څلورو ډلو وویشل شي، هره ډله دې د پښتو نثر د یو ځانګړي پېر ځانګړتیاوې ولیکي. د ډلې استازی دې د خپلې ډلې نظر و وایي.

۳ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي او بیا دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه و وایي:

د پښتو لومړی نثري اثر کوم دی؟

د پښتو لومړنی لاس ته راغلی نثري اثر په کوم کال لیکل شوی؟

د سلیمان ماکو د نثر عمده ځانګړنې کومې دي؟

په پښتو ادب کې د مسجع نثر علمبردار څوک دی؟

خیرالبیان د چا اثر دی او د نثر ډول یې څنګه دی؟

پښتو معاصر نثر له کومه وخته را پیلېږي؟

د غوره نثرونو لیکوال څوک دی؟

۴ـ زده کوونکي دې پخپل منځ کې یو له بل سره خبرې وکړي، هر زده کوونکی دې لومړی خپل ځان په څو لنډو جملو کې نورو ته وروپېژني او بیا دې د هرې دورې د نثر د خصوصیاتو په اړه ترې معلومات وغواړي.

۵ـ زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي، په پښتو نثر کې د لیکلو کتابونو نومونه دې په توره تخته ولیکي.

۶ـ څو تنه زده کوونکي دې د لوست لنډیز او مطلب نورو ټولګیوالو ته بیان کړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د پښتو نثر د ودې په اړه یوه مقاله ولیکي او د بلې ورځې د پښتو مضمون په ساعت کې دې ټولګیوالو ته و وایي.



# شــــعر

هر ژوندی ولس شعر او ادب لري. ليکوال او شاعران لري. شعر د انسان په ختيځ کې اخښنل شوی. کله چې انسان په ښو او بدو پوهېدلی، نو په شعر ويلو يې پيل کړی دی.

شعر د معنا او مفهوم او ظاهري بڼې په لحاظ د ژوند له تغيير او تحول سره ځان بدل کړی دی. شعر او ادب د انسان د ژوند انځور دی. کله چې انساني ژوندود او کلتور تغيير کوي، نو شعر او ادب هم ورسره بدلون مومي. په دې لوست کې به د شعر په اړه معلومات ولولئ.

شعر څه ډول کلام يا وينا ده؟

ادبیات د محتوا له مخې په تخلیقي او تحقیقی دوو سترو برخو وېشل کېږي. شعر او هنري نثر تخلیقي ادب دی. دا دواړه د ادب مهمې برخې دي. په دې فورم کې ډول ډول موضوعات، ټولنیز واقعیتونه او حقایق په منظومه او منثوره ژبه څرګندېږي. شعر د نورو علومو په څېر کوم ځانګړی او مشخص تعریف نه لري؛ هر څوک یې په پېژندنه، تحلیل او سپړنه کې تر ډېره حده له خپل ذوق نه کار اخلي. له همدې امله یې تر اوسه داسې تعریف نشته چې د ټولو لپاره یو شان د منلو او تایید وړ وي. ادبپوهان د شعر د پېژندنې لپاره بېلابېل نظریات اوتعبیرونه لري، څو یې په لاندې ډول در پېژنو:

شعر عربي کلمه ده او هغې ادبي وینا ته ویل کېږي چې د ویونکي عواطف او تخیل بیان کړي. سپېڅلې خوندورې وینا ته چې وزن او قافیه ولري، شعر ویل کېږي. شعر له هغو لطیفو او نازکو احساساتو او تخیلاتو څخه عبارت دی، چې د موزونو او رنګینو الفاظو په جامه کې راوړل شي. شعر هغه وینا ده چې الفاظ یې ښکلي وي او ویونکی پکې فکر، پوهه، ذوق، د زړه هېجان او د روح اغېزه سره ګډ کړي. د اهنګ لرونکو عبارتونو په واسطه د واقعیت تخیلي او بیاځلي (تکراري) انځورولو ته شعر ویل کېږي. شعر هغه وزن لرونکې وینا ده چې په انساني عواطفو او احساساتو کې خوځښت پیدا کوي. دغسې د شعر په لسګونو نور تعریفونو او تحلیلونه شته.

که پورته یادو شوو تعریفونو ته په ځیر وګورو، تخیل، جذبات، احساسات، ښکلا، عواطف، خوند، مفکوره، وزن و اهنګ پکې هغه مشترک ټکي دي، چې ادبپوهان یې د یوې وینا د شعریت معیارونه ګڼي. ځینو د وزن تر څنګ قافیه هم د شعر د اساسي رکن په حیث بللې ده، خو اوس د نویو ازادو بې قافیې شعرونو په را منځته کېدو سره ثابته شوې، چې قافیه د شعر اساسي توکی نه، بلکې یو عارضي یا فرعي رکن دی.

په دې توګه ویلای شو:

شعر د ټولنیزو واقعیتونو غبرګون دی. شاعر له خپل چاپېریال څخه اغېزمن کېږي، د ټولنې هرې پیښې ته په حقیقي او واقعي سترګه ګوري او د هرې پیښې اصل او بنیاد را سپړي. په داسې ښکلې ژبه یې وړاندې کوي او داسې په زړه پورې یې تمثیلوي، چې د

اوریدونکو او لوستونکو احساسات را وپاروي او پر احساساتو يې راولي.
دلته به د نوي او ازاد شعر یوه بېلګه ولولو:

زه مسافر یم خو لار ورکی نه یم
ما د رڼو کروندو لار لیدلې
زه هغه وریځې په سکروټو ولم
چې د ځنګله د کمیسه پولوته
د نیمو شپو ترانې لونې
زه مسافر یم خو لار ورکی نه یم
ما د سپیدو په لوري پل ایښی دی
زه د ایمان او ارادې په ګوتو
د توري شپې ګرېوان ته لاس اچوم
او د انسان د ازادۍ کوترې
د شنه اسمان لوري ته الوزوم
زه مسافر یم خو لار ورکی نه یم
په منډه منډه د یار کلي ته ځم
هلته تودوخه او رڼا ډېره ده
زه به لمر بوځمه د یار کلي ته
چې یخ وهلې ځمکه وغوړېږي
او چمن وخاندي
او په سپېرو شونډو کې
د امیدونو موسکا ونخېږي
(...)

دویمه بېلگه:

دا زمـــــوږ زیـــبـــا وطـــن
دا زمـــــوږ لــــېـــلا وطـــن
دا وطـــــن مــــو ځـــان دی
دا افــــغـــانـــســـتـــان دی
دا د مــیــنـــې کــــور زمـــوږ
دا د پـــلـــرو گــــور زمـوږ
نـــــه ورکـــــــوو چـــا لـــره
دا د ســـتـــرگــو تـــور زمـــوږ
نـــــه دی د بـــــل چـــا وطـــن
دا دی د شـــېـــرشـــاه وطـــن
کـــور د خـــوشـــحـــال خـــان دی
دا افــــغـــانـــســـتـــان دی
دا وطـــــن دی ځــــان زمـــوږ
دا وطـــــن ایـــمـــان زمـــوږ
وایــــــی پـــه خـــاپـــوړو کـــې
داســـــې مـــاشـــومـــان زمـــوږ
دا مــــــو د بــــابـــا وطـــن
دا مــــــو د دادا وطـــن
پـــه مـــوږ بـــانـــدې ډېـــر گـــران دی
دا افــــغـــاانـــســـتـــان دی
ځـــارېـــې لـــه ســـیـــنـــدونـــو شـــم
ځـــارېـــې لـــه ډاگـــونـــو شـــم
ځـــارېـــې لـــه خـــوږونـــو شـــم

ځـــار يـــې لـــه دې غـــرونـــو شم
دا زمـــــــوږ اشـــنـــا وطـــن
زړګـــی مـــې پـــرې روښـــان دی
دا افـــغـــانـــســـتـــان دی
دا وطـــن زيـــارت زمـــوږ
دا وطـــن نـــعـــمـــت زمـــوږ
دا وطـــن پـــه دې دنـــيـــا
دی لـــکـــه جـــنـــت زمـــوږ
دا وطـــن صـــفـــا وطـــن
زړه د اســـيـــا وطـــن
ژونـــدون د مـــلـــنـــګ جـــان دی
دا افـــغـــانـــســـتـــان دی

د شاعر لنډه پيژندګلوي:

اروا ښاد ملنګ جان په ۱۲۹۳ لمريز کال د ننګرهار ولايت په بهسودو کې زېږېدلی دی. پلار يې ملک عبدالشکور نومېده چې په درې کلنۍ کې ترې يتيم پاتې شو. د ملنګ جان لومړنی نوم محمد امين و. وروسته امين جان او په پای کې ملنګ جان شو. پنځلس کلن و چې د شعر ژبه يې ويانده شوه او په خوږو نغمو يې پيل وکړ. په ۱۳۳۶ لمريز کال د لړم په لسمه چې کله له کابله ننګرهار ته له خپلې کورنۍ سره را روان و، د لته بند په کږلېچونو کې د موټر د اوښتلو له امله له خپل يوازيني درې کلن زوی، دوا جان سره مړ شو.

د متن لنډیز:

ادبیات په تحقیقي او تخلیقي برخو باندې وېشل کېږي. شعر او هنري نثر تخلیقي ادب دی چې دا دواړه د یو ولس د ادب مهمې برخې دي او د هغه ولس د هویت څرګندونه کوي. شاعر او لیکوال له خپل چاپېریال څخه اغېزمن کېږي، ټولنیز واقعیتونه په اهنګواله ژبه په خپل شعر کې څرګندوي، د ټولنې هرې پیښې ته د زړه په سترګو ګوري او په ښکلو، رنګینو او موزونو ویناوو کې یې نغاړي. پخوا شعر موزون او مقفٰی کلام بلل کېده او د وزن تر څنګ یې قافیه د شعر اړین توکی باله، مګر د نوي او ازاد شعر په را منځته کېدو دا جوته شوه، چې قافیه په شعر کې یو عارضي رکن دی، نه اصلي. د شعر لپاره اړین توکي: اهنګ، وزن، مفکوره، تخیل، احساس او عاطفه دي. (زه مسافر یم خو لار ورکی نه یم) تردې سرلیک لاندې د ازاد شعر یوه ښکلې بېلګه ده چې هم خوند لري او هم جاذبه، هم شعریت پکې دی او هم موسیقي. له ښکلې او انساني عاطفې ډکه ده او د حال د ښه بیان په ترڅ کې د ښې راتلونکې هیله هم پالي او لوستونکي ته یو نوی تصویر هم په لاس کې ورکوي. دویمه بېلګه شعر چې په کلاسیک قالب کې مرحوم ملنګ جان ویلی دی. شاعر پخپل شعري کلام خپل وطن زیبا بللی، خپل وطن خپله لېلا او معشوقه ګڼي دا له نیکونو او پلرونو نه په میراث پاتې وطن به د زړه په وینو سمسوروو او په مېړانه به یې ساتنه کوو...



## فعالیتونه

۱_ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د شعر د پېژندنې په اړه خپل نظر ووایي.

۲_ څلور تنه زده کوونکي دې په وار سره له متن څخه د شعر یو یو بند په لوړ اواز ووایي.

۳ـ له زده کوونکو څخه دې څلور نفري ډلې جوړې شي، د هرې ډلې یو غړی دې د شعر یو بند ولولي او د بلې ډلې غړی دې هماغه لوستل شوی متن معنا کړي.

۴ـ زده کوونکي دې شعري متن په پټه خوله ولولي او د تشبیه ارکان دې پکې وښیي.

۵ـ زده کوونکي دې د تختې په مخ لاندې لغات معنا او په مناسبو جملو کې استعمال کړي:

ایجاد، ویاند، چاپېریال، بیا ځلي، شفا، موسکا، مخیل، لونل، پل، تودوخه.

۶ـ څو تنه زده کوونکي دې د شعر مفهوم په څو جملو کې د ټولګي په وړاندې ووایي.

۷ـ دوه دوه تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي، د لوستل شوي متن په اړه دې په خپل منځ کې خبرې وکړي.




زده کوونکي دې د لومړي او دویمې بېلګې شعرونو لنډیز په څو کرښو کې په روان نثر ولیکي او د بلې ورځې د پښتو مضمون په ساعت کې دې ټولګیوالو ته ووایي.

لاندې شعر ولولئ او خوند ترې واخلئ:

هـر مـلـخـی د سـربـازۍ لـه هـنـر څـه زده
چـې پـه دا هـنـر کـې سـر ښـنـدې پـتـنـگ د ی
لا تـر اوسـه یـې مـاغـزه پـه کـرار نـه دي
چـا چـې مـا سـره و هـلـی سـر پـه سـنـگ دی
لا پـه خـوب کـې پـه لـرزه پـرېـوزي لـه کټه
چـې د چـا تـر غـوږ زمـا د تـورې شـرنـگ دی
کـه پـه دا دور مـې گـورې هـغـه زه یـم
چـې مـې داغ پـه خـاطـر ایـښـی دا ورنـگ دی
درسـت جـهـان مـې و مـغـلـو تـه خـیـبـر کړ
ځـای ځـای یـې پـښـتـانـه وتـه قـلـنـگ دی
خوشحال خان خټک

نیکمرغه هغه څوک دی چې له خپلې هرې خطا څخه نوې تجربه تر لاسه کړي.
((سقراط))



# پښتو ادبیاتو دویمه (منځنۍ) تاریخي دوره

د هرې ژبې ادب پر دوو ډولونو (شفاهي او لیکني) باندې وېشل کېږي. پښتو هم له هغو یادو ژبو څخه ده چې لرغونی ګڼی (شفاهي) او لیکني (تحریري) ادب لري. شفاهي ادبیات د ټولنو له را منځته کېدو سره سم را منځته شوي دي. هره یوه ټولنه خپل دود، رسم و رواج او فرهنګ د ولسي ادبیاتو په هنداره کې نورو ته ورښیي. د شفاهي ادبیاتو پیل نشي ځرګندېدای، خو لیکلي ادبیات هرو مرو له یو تاریخي پړاو سره تړاو لري. که موږ د پښتو لیکلو ادبیاتو په اړه خبرې کوو، نو باید کره لاسوندي یې ولرو چې له بده مرغه زیات شمېر یې د ځینو لاملونو له امله په لاس کې نشته.

بیا هم د پښتو لیکني ادب د لاښې پېژندنې لپاره پښتو ادبیات په درېو دورو:

(لرغوني، منځنۍ یا کلاسیکه، معاصره) باندې وېشل شوي دي. په لسم ټولګي کې مو د پښتو ادبیاتو په لرغوني دورې خبرې کړي دي. د درېمې یا معاصرې دورې په اړه به په دولسم ټولګي کې معلومات تر لاسه کړو. دلته د پښتو ادب په منځنۍ دورې باندې غږېږو.

د پښتو ادبیاتو دویمې تاریخي دورې د پیل او پای په اړه څه پوهېږئ؟

د پښتو ادبیاتو دویمه دوره چې د پښتو ادبیاتو تاریخ منځنۍ او کلاسیکه دوره هم ورته ویلای شو، د لسمې هجري پېړۍ له نیمایي پېلېږي او د څوارلسمې هجري پېړۍ تر لومړیو دریو لسیزو پورې را رسېږي. د پښتو ادبیاتو دا دوره د پښتو ادب په تاریخ کې ورځای لري. په دې دوره کې پښتو ادبیات د افغانستان، پښتونخوا او هند په سیمو کې له ځینو ملي، مذهبي او پښتني غورځنگونو سره په تړاو را ټوکېږي او وده کوي. د سیمې د هغه مهال فرهنگي ادبي جریانونه پر پښتو ادبیاتو خپل اغېز ښندي او د همدغو جریانونو په پیروۍ په پښتو ادب کې ځانگړي سبکو نه پیدا کېږي او خپل ځانگړي پېروان مومي.

د لومړۍ ادبي دورې په پرتله د دې دورې یوه ستره ځانگړنه دا ده چې موږ یې بشپړ او مکمل ادبي او فرهنگي اثار په لاس کې لرو. په دې دورې پورې اړوند په سلگونو پښتو دېوانونه، کیسه ییز اثار او په زرگونو ولسي سندرې زموږ سره شته چې د پښتو د ادبي تاریخ د یوې سترې پانگې په توگه هر اړخیز بحثونه پرې کولای شو.

په دې دوره کې له گاونډیو ژبو سره د پښتو ادبیاتو تړون هم پراختیا مومي. له عربي، فارسي او هندي ژبو څخه پښتو او له پښتو څخه ځینو دغو ژبو ته د اثارو د راکړې ورکړې مسئله هم خپلو لوړو پړاو ونو ته خېژي. د پښتو ادبیاتو دویمه دوره له روښاني غورځنگه پیل او همداسې پسې په اخوند درویزه او د ده پر پېروانو، بیا د خوشحال خټک، رحمان بابا، هوتکیانو او د احمد شاهي پېر تر نورو فکري او فرهنگي بهیرونو رارسېږي.

د روښانیانو او اخوند درویزه دواړو په اثارو کې عرفان (تصوف) او د عرفاني لارو د بنسټونو په خپلولو سره ځان الهي ذات ته نژدې کول، د نفس تزکیه، د زړه سپېڅلتیا، د اسلام د مقدس دین د اساساتو بیان، د اسلام د دین د لارښوونو په رڼا کې د خلکو اخلاقي روزنه پندونه، نصایح او نور دې ته ورته مطالب د دې ډلو له خوا په لیکل شوو، ژباړل شوو او پنځېدلو اثارو کې لیدل کېږي. د اهدافو همدا ورته والی موږ دې ته اړ باسي چې د دغو دواړو ډلو اثار په یوه پړاو کې وڅېړو او د دویمې ادبي دورې د لومړي پړاو

نوم پرې کښېږدو.

خیرالبیان او مخزن الاسلام د دې پړاو دوه مشهور کتابونه دي چې په مسجع نثر لیکل شوي دي او له لرغونې دورې څخه یې یوه ځانګړې لار غوره کړې ده. مقصودالمؤمنین، صراط التوحید، فخرالطالبین، حالنامه، د پښتو رسم الخط د بایزید روښان نور اثار دي چې په همدې دوره کې لیکل شوي دي. د دې پړاو په منثورو اثارو کې پر نورو سربېره د علي محمد مخلص او ارزاني روښاني رسالې د یادولو وړ دي. د دې رسالو نثرونه سجع نه لري او د هغه وخت له شرایطو سره سم روان نثر بلل کېدای شي. د دې پړاو په اشعارو کې غزلې، قصیدې، رباعي، مثنوي، قطعې، مربع او مخمس اشعار پیدا کېږي. په دې شعرونو کې مربع او مخمس داسې شعري انواع دي چې په لومړۍ ادبي دوره کې یې څرک نشو ایستلای. د دې پړاو زیاتره لیکوال او شاعران له څو ژبو لکه پارسي، پښتو، عربي او هندي سره اشنا دي، په دغو لیکوالو کې ځینو پر پښتو سربېره په هندي، پارسي او عربي ژبو هم اثار لیکلي دي چې له نورو فرهنګونو سره د پښتو لیکوالو تړاو ځنې څرګندېږي. ارزاني خویشکی، واصل روښاني، خواجه محمد، کریمداد بنګښ، علي محمد مخلص، دولت لوانی، قادر داد، اخوند درویزه، محمد حلیم، عبدالسلام، اخوند احمد، بابو جان، شیخ محمد سعید او په لسګونو نور د دې پړاو شاعران او لیکوالان بلل کېږي. خوشحان خان خټک او د ده لارویان ددې دورې بل پړاو جوړوي.

خوشحال نه یوازې د خپل وخت یو ټولنیز سیاسي شخصیت او بریالی سالار و. بلکې دی د پښتو ژبې یو داسې شاعر او لیکوال و چې که وایو د پښتو ادب تاریخ دده له نامه او اثارو پرته نیمګړی دی، نو زیاتی به نه وي.

خوشحال خټک پښتو ژبې او ادب ته په نظم او نثر کې هغه څه ورکړل چې تر ده د مخه او وروسته یې ښایي ساری ډېر لږ وګورو. خوشحال خان د خپل هنر او خپلې ژبې د لفظي او معنوي بډایتوب لپاره د ګاونډیو ژبو له ادبي زمینو څخه پوره ګټه واخیسته، پښتو شعر یې د شکل او شعري ژانرونو له پلوه بډای کړ او په موضوعي لحاظ یې داسې څه پرې نه ښودل چې شعر یې پکې نه وي ویلی. ده د فارسي ژبې ټول قالبونه لکه:

(مثنوی، غزل، قصیده، رباعي، مخمس او نور) لفظي او معنوي صنایع په پښتو ادب کې راوستل. د مضمون له پلوه د ده په اثارو کې ډېر زیات نوښتونه لیدل کېږي چې د هغه وخت په شرایطو کې ساری نه لري. په دې پړاو کې د پښتو ادب ځینې اړخونه د پښتو له ټولنیز ژوند څخه رنګ اخلي. د پښتو غزل د ختیځ غزل له پېژندنې سره سم ټولې هنري ښېګنې خپلې کړې او پښتو بوللې هم د غوري دورې د بوللو رنګ او خوند ومومند. د ختیځ ادب داستانونو هم پښتو ادب ته لار پیدا کړه، د پارسي او عربي ځینې اثار په پښتو وژباړل شول.

دا عصر یوازې د نظم د نهضت عصر نه دی، بلکې د نثر لمن هم په دې دوره کې پراختیا موندلې ده او د پیر روښان د مسجع نثر له خصوصیاتو څخه را اوښتی دی. د افکارو ژورتیا، د تخیل رنګیني او د قالبونو تنوع د منځنۍ ادبي دورې غوره ځانګړنې ګڼل کېږي. خوشحال تر درې سوو زیات اثار درلودل. د زمانې له تاړاکه د هغه د راپاتې شوو اثارو په ډله کې د شعرونو له کلیاتو، فراقنامې، دستارنامې، بازنامې (منثور او منظومه) فالنامې، فضل نامې، طب نامې، بیاض، ځنځیرۍ او سواتنامې نومونه یادولای شو. خوشحال خټک په پښتو ادبیاتو کې یو ځانګړی سبک را منځته کړ. د ده د کورنۍ یو شمېر نورو شاعرانو د دغه سبک پیروي کړې ده.

اشرف خان هجري، عبدالقادر خټک، سکندر خان خټک، صدر خان خټک، ګوهر خان خټک، بي بي حلیمه خټک، افضل خان خټک، قلندر، اشرف خلیل او یو شمېر نور د خوشحال خان خټک د سبک پیروان دي.

د دې پړاو بل مخکښ رحمان بابا و. په یو ولسمه پېړۍ کې د راپورته شوو شاعرانو په ډله کې یو هم عبدالرحمان مومند و چې پښتانه له ډېرې مینې او زیاتې عقیدې ورته (بابا) وایي او په پښتني ولسونو کې د رحمان بابا په نامه مشهور دی. رحمان بابا د یو ځانګړي سبک خاوند دی. د ده سبک د خپلو ځانګړتیاو و له مخې په ولسي او فرهنګي حلقو کې ډېر شهرت او محبوبیت وموند او د دولسمې، دیارلسمې او څوارلسمې پېړۍ شاعران په ده پسې روان شول. د رحمان بابا سبک پېچلتیا نه لري، ډېر طبیعي او ساده

دی، د شعر د الفاظو په ټاکلو کې زیار ایستل شوی دی؛ د شعر د خوند او رنګ لپاره یې ډېر ښکلي خو ساده او عام فهمه الفاظ غوره کړي دي. د واقعیتونو بیان ته زیات پام کېده، اخلاقي، عرفاني او نور ټولنیز مسایل پکې راغلي دي. په دې پړاو کې لس ګونه پښتانه شاعران را منځته شول چې د شعرونو پنډ دیوانونه یې درلودل. د دې پړاو شاعران زیاتره عالمان و و. د خپلې سیمې د ژبو له ادبیاتو سره یې اشنایي درلوده، له خپلې مورنۍ ژبې پرته یې په فارسي او هندي هم شاعري کوله. د رحمان بابا د سبک په پېروانو کې د یونس خېبري، مهین خلیل، معزالله مومند، اخوند ګدا، حافظ الپوري، نجیب سر بندي، عبدالعظیم سواتي، میا نعیم متي زي او یو شمېر نورو نومونه یادولای شو.

هوتکیان او د دې دورې بل پړاو:

په کندهار کې د پښتو د ملي دولت جوړېدل او په شاهي دربار کې د پښتو د ودې د زمینې را منځته کېدل د دویمې دورې په را وروسته پړاو کې ټاکلی دریځ لري. کندهار د خپل جغرافیاوي موقعیت له مخې د لسمې او یو ولسمې پېړۍ په جریان کې د ایران د صفوي او د هند مغولي امپراتورۍ تر منځ واقع شوی و.

د پښتو او فارسي ژبو یو شمېر اثار دغه مهال منځته راغلي دي چې د ځینو هغو په ایجاد او تالیف کې هوتکي پاچاهانو لاس درلودلی دی. په دې توګه د هېواد د فرهنګي تاریخ په لیکلو کې د دغه کورنۍ نوم لوړ ځای لري.

د میرویس نیکه مور، نازو انا، زوی، شاه حسین او لور، زینبه د پښتو ژبې شاعران و و، ربدي خان، حافظ نور محمد، داود هوتک، د پټې خزانې لیکوال محمد هوتک، یار محمد هوتک، ملا محمد یونس توخي، بابو جان، ملا نور محمد غلجی او په لسګونو نور د دې دورې وتلي شاعران او لیکوال دي. «پټه خزانه» د دې مهال یو ارزښتمن کتاب دی چې د دریو خزانو په درلودلو د لرغونو او دهغه د خپل مهال زیات شمېر پښتانه نارینه او ښځینه لیکوال او شاعران او د هغوی د لیکنو بېلګې تر موږه را رسوي. همدارنګه د هوتکو د پاچاهۍ په مهال د پښتو د ولسي ادب ډېرې ښکلې بېلګې را منځته

شوي چې زموږ د ولسي شعر برخه يې بډايه کړې ده. په دې پړاو کې د پښتو د ليکلي ادب ځينې موضوعات له فولکلور څخه اخستل شوي دي. لکه د (شها او ګلان) نکل او يا د (اوبښ او سوې) کيسه چې د پښتو د ولسي شعر په قالب کې يې نظم کړي دي. د يوولسمې پېړۍ په پيل او د دولسمې پيړۍ په لومړيو کې په هند کې د پارسي ژبې يو شمېر اوسېدونکو شاعرانو هغه نوي شعر ته لار ومونده چې د لسمې هجري پېړۍ په پيل کې را منځته شوی وه. دې سبک د هندي سبک په نامه شهرت وموند.

دې سبک د يوولسمې پېړۍ په شاوخوا کې پښتونخوا او د افغانستان سيمو ته هم لاره ومونده، همدغه مهال هندي سبک پښتو ادب ته لاره پيدا کړه چې په پښتو شاعرۍ کې د هندي سبک بنسټ ايښودونکی حميد مومند دی.

حميد د شعر ويلو ډېره ښه وړتيا درلوده او د تازه مضمون په پيدا کولو ښه ماهر و. خو هنر يې بيا دا و چې د هندي سبک بنسټونه يې په اعتدالي بڼه خپل کړي وو. د ده شاعرۍ د پښتو ژبې لفظي او معنوي ځانګړتياوې نه دي بايللی. حسين، قلندر، خانګل خليل، کامګار خټک، دوست محمد، علي خان مامنزی، حمدالله کاکا خېل، سليم، محمدي صاحب زاده، بېدل هشنغری، کاظم خان شېدا، محمد بياض، نور محمد نوري افغان او يو شمېر نور په پښتو ادب کې د هندي سبک پېروان دي چې نژدې هر يو يې د دېوان خاوند شاعر بللی شي. د پښتو ادبياتو د دويمې دورې په وروستي پړاو کې د احمدشاه بابا په کورنۍ کې د پښتو پالنه هم ځانته ځای لري.

احمد شاه بابا له خپلو سياسي، ټولنيزو او ملي خدمتونو سربېره د خپل هېواد فرهنګ لپاره هم نه هېرېدونکي خدمتونه کړي دي. د پښتو او فارسي ژبو شاعران او ليکوال يې روزلي دي. خپله هم شاعر و، په پښتو ژبه ترې د شعرونو يو دېوان پاتې دی، د کورنۍ له غړو څخه يې تېمورشاه او شاه شجاع په پښتو شاعري کړې ده. په دربار کې يې وکيل الدوله، عبدالله جان پوپلزی هم د پښتو ژبې شاعر و.

پير محمد کاکړ د احمدشاه بابا د دربار يو بل شاعر و، دی د پښتو د ډېرو ښو شاعرانو او لويو عالمانو په ليکه کې ولاړ سړی و، نوموړی د پښتو ژبې يو دېوان لري. د هغه

دېوان د هنري ارزښتونو له پلوه د مننې وړ دی. انځورونه يې ښکلي دي پر دې سربېره پير محمد کاکړ د (معرفت الافغاني) په نامه د پښتو ژبې يو ګرامر هم ليکلی دی چې د پښتو نثر ښې نمونې پکې خوندي دي.

شمس الدين کاکړ د هغه د سبک له پېروانو له ډلې څخه و. حافظ ګل محمد مرغزی د احمدشاهي دوران يو بل شاعر و، نوموړی له احمدشاه بابا سره په لښکري سفرونو کې ملګری و. مرغزي احمدشاهي شاهنامه ليکلې ده، په شاهنامه کې د احمدشاه بابا د (۱۶) کلونو ځينې پېښې بيان شوي دي. په دې پېر کې يو شمېر نور شاعران هم تېر شوي چې حبيب الله، ملا علم اپريدی، ابوالقاسم او يو شمېر نور يې د پښتو دېوانونو خاوندان و و.

د متن لنډيز:

د پښتو ادبياتو منځنۍ يا دويمه دوره د لسمې هجري پېړۍ له نيمايي پېلېږي او د خوارلسمې هجري پېړۍ تر لومړيو دوو لسيزو پورې را رسېږي.

په دې دورې پورې اړوند ادبي اثار د يوې سترې پانګې په توګه زموږ په واک دي چې هر اړخيز بحثونه پرې کولای شو.

دا دوره له روښاني غورځنګه پيل او همداسې پسې پراخوند درويزه او د ده په پېروانو، خوشحال ختک، رحمان بابا، حميد مومند، د هوتکو او احمدشاهي پېر تر نورو فکري او فرهنګي بهيرونو رارسېږي، تر هغه چې دا دوره پای ته ورسېږي او ځای يې دريمه ادبي (معاصره) دوره ونيسي. د پښتو ادبياتو په دې دوره کې دوه لوی سياسي او ادبي نهضتونه تېر شوي دي، يو روښاني ملي نهضت دی چې سر لاری يې بايزيد روښان و او بل خوشحال خان او د هغه دکورنۍ ادبي او ملي نهضت و چې بنسټ اېښودونکی يې د پښتو ژبې او ادب پلار خوشحال خان ختک و. د روښاني نهضت يوه لويه ځانګړتيا دا وه چې په هغه وخت کې روښان او پلويانو يې په پښتنو کې سياسي شعور را ژوندکړ او پښتانه يې د فيوډالي مغولو پر ضد د هېواد د آزادۍ

له پاره مبارزې ته چمتو کړل او له بله پلوه یې په پښتو ادبیاتو کې د قدر وړ اثار و لیکل او بایزید روښان په پښتو ادب کې د مسجع نثر بنسټ کېښود او خپل کتاب خیرالبیان یې په همدې سبک ولیکه. د روښاني دورې په منثور اثارو کې ځینې رسالې شته چې نثرونه یې سجع نه لري او د هغه وخت له شرایطو سره سم روان نثر بلل کېږي. د بېلګې په ډول د علي محمد مخلص او ارزاني روښاني رسالې یادولی شو. د کلاسیکې دورې په لومړي پړاو کې اخوند درویزه، چې په فکري لحاظ د بایزید روښان مخالف و، خو د نثر د سبک په لحاظ یې د پیر روښان له مسجع نثر څخه پېروي کړې او د خیرالبیان په مقابل کې یې خپل کتاب ((مخزن الاسلام)) په مسجع نثر ولیکه. د کلاسیکې دورې د دویمې برخې بنسټ ایښودونکی، چې خوشحال خان خټک دی، د قلم او اوتورې دواړه ډوله مبارزه یې پر مخ بیولې ده. د توري په ډګر کې د فیوډالي مغولو په ضد د خپل هېواد ازادي او د یو ملي حکومت د جوړېدو لپاره هلې ځلې. د قلم په ډګر کې د پښتو ژبې د ملي ادبیاتو په پراختیا کې د قدر وړ خدمتونه کړي او پښتو ژبې ته یې غنیمت اثار په میراث پرېښودل. خوشحال پښتو ادب کې د یو نوي سبک بنسټ کېښود، په نثر کې یې د پیر روښان سبک نه پیروي و نه کړه، د ساده ګۍ او روانۍ لاره یې غوره کړه. له بلې خوا یې پښتو شعر د شکل او مضمون له خوا خورا بدلون رامنځته کړ. د خوشحال سبک د ده په کورنۍ کې ښه وپالل شو. رحمان بابا د دویمې ادبي دورې د یو بل پړاو مخکښ و. د ده سبک د خپلو ځانګړتیاوو له مخې په ولس او فرهنګي حلقو کې ډېر شهرت او محبوبیت وموند او د دولسمې، دیارلسمې او څوارلسمې پېړۍ شاعران په ده پسې روان شول. د رحمان بابا سبک پېچلتیا نه لري. ډېر طبیعي او ساده دی. د شعر د خوند او رنګ لپاره یې ډېر ښکلي، خو ساده او عام فهمه الفاظ غوره کړي دي. د واقعیتونو بیان ته یې زیاته توجه کړې ده.

په کندهار کې د پښتنو د ملي دولت جوړېدل او په شاهي دربار کې د پښتو د ودې د زمینې را منځته کېدا د دویمې دورې په را وروسته پېرونو کې ټاکلی دریځ لري. د

هوتکو د پاچاهۍ په ولکه کې دغه مهال په سلګونو لیکوالو اثار لیکلي او شعرونه يې ويلي دي. د پښتو قيمتي او تاريخي اثر (پټه خزانه)، چې په درې خزانو مشتمله ده، همدا مهال ليکل شوې ده. د پښتو د تحريري تاريخي حماسو ليکل همدا د هوتکو د پاچاهۍ په دوران پورې اړه لري. د يوولسمې هجرې پېړۍ په پيل او د دولسمې پيړۍ په لومړيو کې په هندکې د فارسي ژبې يو شمېر اوسېدونکو شاعرانو هغه نوي شعر ته لار وموندله چې د لسمې پېړۍ په پېل کې را منځته شوی. دې سبک د هندي سبک په نامه شهرت وموند چې په پښتو ادب کې بنسټ اېښودونکی حميد مومند او پالونکی کاظم خان شېدا او نور يادولی شو. حميد مومند هم په پښتو ادب کې د يو ځانته سبک خاوند شاعر ګڼلی شو. د دويمې ادبي دورې په وروستي پړاو کې احمد شاه بابا له خپلو سياسي ټولنيزو او ملي خدمتونو سربېره د خپل هېواد فرهنګ لپاره هم نه هېرېدونکي خدمتونه کړي دي، د پښتو او فارسي ژبو شاعران يې روزلي دي، احمدشاه بابا خپله هم شاعر و چې د شعر يو بشپړ دېوان لري او په کورنۍ کې يې تېمور شاه او شاه شجاع په پښتو شاعري کړې ده. پير محمد کاکړ هم د احمدشاه بابا د دربار شاعر و، د معرفت الافغاني په نامه يې لومړی پښتو ګرامر ليکلی او د شعر ديوان هم لري.

## فعاليتونه

۱_ درې تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د پښتو ادبياتو د دويمې ادبي دورې د پيل او پای په اړوند دې خبرې وکړي.

۲_ زده کوونکي دې په دوو ګروپونو ووېشل شي، يو ګروپ دې د دويمې ادبي دورې لومړي پړاو او بل ګروپ دې د دويم پړاو ځانګړتياوې وليکي او د هر ګروپ مشر دې د خپل ګروپ نظر ووايي.

۳_ پښتو ادبياتو کومې تاريخي دورې تر شا پريښې دي؟ درې تنه زده کوونکي دې د

خپلو معلوماتو له مخې د هغو په اړه معلومات وړاندې کړي.

۴_ زده کوونکي دې د هغو د شمېر له مخې په شپږو ډلو وویشل شي، هره ډله دې د دویمې دورې په یو ټاکلي پړاو باندې خپل نظرونه روښانه کړي. د هرې ډلې استازی دې هغه را غونډ او د ټولګي په وړاندې دې ولولي.

۵_ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

پښتو ادبي تاریخ په څو دورو وېشلی شو؟

پښتو ادبیاتو دویمه تاریخي دوره د لومړۍ دورې سره څه توپیر لري؟

په عمومي ډول د پښتو ادبیاتو په کلاسیکه دوره کې کوم ادبی او سیاسي نهضتونه پېژنئ؟

خیرالبیان د چا اثر دی او په کوم سبک لیکل شوی دی؟

د خوشحال د پنځو اثارو نومونه واخلئ؟

۶_ څلور تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي، د پښتو ادبیاتو منځنۍ دورې په اړه دې یوه یوه دقیقه خبرې وکړي.

۷_ دوه تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي په وړاندې د دویمې ادبي دورې لنډیز ووایي.




زده کوونکي دې په کورکې د پښتو ادبیاتو منځنۍ دورې عمده ځانګړنې ولیکي او په بله ورځ دې ټولګیوالو ته ووایي.





# د ناروغ پوښتنه
# (خبرې اترې)

ښځه د کورنۍ او کورنۍ د ټولنې بنسټ جوړوي. په ګډ ژوند کې د یوې ټولنې وګړي یو له بل سره راشه درشه، تګ او راتګ لري؛ د یو بل په حال ځان خبروي؛ د ستونزو او کړاوونو په مهال یو بل ته لاس ورکوي؛ د ناروغتیا، ناورین، غم او خپګان په وخت سره غمشریکي واوسي. له دغو کارونو څخه یو یې د ناروغ پوښتنه ده. د ناروغ په پوښتنه ناروغ خوشحالېږي او زموږ دیني دنده سرته رسېږي.

ایا تاسو کله هم په روغتون کې د ناروغ پوښتنې ته تللي یئ؟

روغتیا لوی نعمت او د انسان شتمني ده، په خوند یې هغه څوک ښه پوهېږي چې یو ځل ناروغ شي. د ناروغۍ په مهال د انسان د وجود مقاومت کمېږي، نهیلي ورته پیداکېږي او دې ته سترګې په لار وي چې دوستان، ملګري او خپلوان یې پوښتنې ته ورشي. د ناروغ په پوښتنې موږ له یوې خوا خپله دیني دنده سر ته رسوو او له بلې خوا د خپل ټولنیز مسؤولیت له مخې له ناروغ سره خوا خوږي کوو او ډاډ ورکوو. ناروغ ته د ورتګ پر مهال ښایي ټولنیز اداب په پام کې ونیسو، هغه ته د خیر او روغ صحت دعا وکړو، ډېرې خبرې ورسره ونه کړو، د هغه د خپګان لامل نشو، بې وخته یې پوښتنې ته ور نشو او له اړتیا پرته ډېر ورسره تم نشو.

لومړۍ محاوره: (میوند ـ خیبر)

مېوند: خیبره وروره، خبر شوی یم چې ناروغ یې؟

خېبر: هو، ناڅاپه را ته د ګېډې خوږ پیدا شو. ورو ورو ډېرېده، مجبور شوم روغتون ته راغلم.

مېوند: نه پوهېږې چې ولې ناروغ شوې؟

خېبر: څه درته ووایم، خامه ګندنه مې خوړلې وه.

مېوند: ګندنه باید ترخوړلو د مخه پاکه پرېمنځل شي.

خېبر: هو، کېدای شي پرېمنځلې یې وي.

مېوند: ځانته پرېمنځل بس نه دي. باید د پټاسو په محلول یا د مالګې په اوبو کې پرېمنځل شي.

خېبر: ښایي د خامې او ناپاکې ګندنې د خوړلو له امله ناروغ شوی اوسم.

مېوند: اوس څنګه یې؟

خېبر: اوس یو څه ښه یم. ډاکټر را ته درمل راکړي.

مېوند: زه درنه ځم. که څه شي ته دې اړتیا وي، چې رایې وړم.

خېبر: نه وروره، ډېره مننه. خدایﷻ دې ښه درسره وکړي.

خبرې اترې:

ظريفه: شريفې خورې، خېر خو به وي، څو ورځې ښوونځي ته را نغلې؟

شريفه: ناروغه شوې وم. د ستوني خوږ را ته پيدا شوی و.

ظريفه: څه دې وکړل، ډاکټر دې وليد که نه؟

شريفه: هو، ومې ليده، د څو ورځو درمل يې راکړل. اوس يو څه ښه يم.

ظريفه: پام کوه شريفې خورې، د ستوني خوږ ډېره بده ناروغي ده.

شريفه: هو خورې، تبې نيولې وم، ټول بدن مې خوږېده.

ظريفه: درمل دې په خپل وخت و خوره او استراحت وکړه.

شريفه: درمل خو خورم، خو استراحت نشم کولای، ځکه لوست را نه تېرېږي.

ظريفه: نه خورې، روغتيا تر بل هر څه مهمه ده. لوست به بيا و وايې.

شريفه: ښه همداسې به وکړم، خو په دې شرط چې نوټونه دې بيا راکړې.

ظريفه: ولې نه خورې، ټول تېر لوستونه به هم درسره تکرار کړم. خدای ﷻ دې تا ښه کړي!

شريفه: کور دې ودان خورې خدای ﷻ دې ښه درسره وکړي.

خبرې اترې:

علي ګل: سرداره سترې مه شې. رنګ دې ولې ژېړ دی؟

سردار: علي ګله، ته خبر نه يې، نژدې مړ شوی وم؟

علي ګل: خدای ﷻ دې نه کړي سرداره ولې؟

سردار: ملاريا شوی وم. سختې تبې مې کولې، ټول ځان مې خوږېده، زړه مې هم را جګېده.

علي ګل: هو، ډېر خپه شوم. ملاريا ډېره بده ناروغي ده.

سردار: درمل مې وخواړه، هغې نور هم بدتر کړم. درمل هم ګرم وو او هوا هم ډېره توده.

علي گل: پوه نشوې، چې چېرته د ملاريا ماشي چېچلی وې؟

سردار: د جمال کاکا کره تللی وم، څو شپې هلته وم. کېدای شي هلته به يې چېچلی يم.

علي گل: ښه پوه شوې، سرداره، چې هلته به ماشي چېچلی يې؟

سردار: د جمال کاکا د کور شاوخوا د اوبو ډنډونه دي. اوبه يې هم خوسا وي. هلته هرو مرو د ملاريا ماشي شته.

علي گل: چېرته چې ناپاکه اوبه وي، چټلي هم زياته وي. هلته ملاريا او نورې ناروغۍ پيدا کېږي.

سردار: کېدای شي د ملاريا د ناروغۍ مخه ونيول شي؟

علي گل: هو، خو ډېر ستونزمن کار دی. موږ کولای شو د ناپاکو اوبو ډنډونه له منځه يوسو او د شپې د خوب په مهال تر پشه خانې لاندې ځملو.

سردار: مننه علي گله. دواړه به د جمال کاکا کلي ته ورشو او هغوی ته به په دې اړه سلا مشورې ورکړو.

د متن لنډيز:

روغتيا شتمني ده، په ارزښت يې هغه مهال پوهېږو چې ناروغه شو. انسان په ژوندکې هرومرو ناروغه کېږي. د ناروغۍ پر مهال بايد ډاکټر ته ورشو او د هغه له لارښوونې سره سم درمل وخورو. د ډاکټر له معاينې نه پرته بايد پخپل سر درمل له خوړلونه ډډه وکړو، ښايي بدن ته د گټې پر ځای زيان ور ورسېږي. که ناروغي ډېره وي، بايد روغتون ته لاړ شو، او د ډاکټر تر لارښوونې لاندې درمل وخورو. ناروغ د ناروغۍ پر مهال ډېر نهيلي کېږي. بايد پوښتنې ته يې ورشو، څه مرسته چې مو له لاسه کېږي بايد ورسره يې وکړو. دا د ناروغ پر روحيه ښه تاثير کوي، ناروغ پرې خوشحالېږي، روحيات يې پياوړي کېږي او د روغتيا احساس کوي.



## فعالیتونه

۱ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، د مرکې په څېر دې یو د بل حال و پوښتي.

۲ـ دوه دوه تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او په لاندې ډول دې خبرې وکړي:

شریف: ظریفه! د لاس او پښوبندونه مې درد کوي، چا ته لاړ شم.

ظریف: شریف جانه، په (بر کلي) کې د داخله ناروغیو یو ډېر پوه ډاکټر دی. هغه ته ورشه.

ښنګه به یې پیدا کړم؟ که وخت لرې ته را سره لاړ شه.

اوس خو وزګار نه یم. مازدیګر ته به دواړه لاړ شو.

۳ـ درې تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او لاندې لغتونه دې د تختې پر مخ ولیکي او په جملو کې دې استعمال کړي:

۱ـ لامل ۲ـ روغتون ۳ـ درمل ۴ـ درملتون ۵ـ ټولګیوال

۶ـ زیانمن ۷ـ ناورین

۴ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او په چوکاټ کې لیکل شوو کلیمو نه دې جملې جوړې کړي:

ډاکټر، روغتون، روغتیا، شتمني، شریفه، ظریفه، مېوند، خېبر، ناروغ، ته، دی، ده، لاړ، شي، باید.

۵ـ دوه تنه زده کوونکي، یو د ډاکټر او بل د ناروغ په رول کې د ټولګي مخې ته راشي او په لاندې ډول دې خبرې وکړي:

ناروغ: نه پوهېږم ډاکټر صاحب ګېډه مې خوږېږي.

ډاکټر: د شپې دې څه خوړلي دي؟

ناروغ: لوبیا او یو څه ګندنه.

ډاکټر: پر مېز څمله چې معاینه دې کړم.

ناروغ: داکټر صاحب ناروغي خو به مې خطرناکه نه وي؟

ډاکټر: نه داسې څه نشته، تاسو خپلې روغتیا ته هېڅ پام نه کوئ.

ناروغ: ولې نه، موږ خو نه غواړو چې ناروغه شو.

ډاکټر: تاسو پوهېږئ چې د خامو خوړو او ناپاکه ګندنې خوړل څومره ضرر لري؟

۶ـ یو تن زده کوونکی دې د لوست د لنډ مطلب په اړوند خبرې وکړي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې هر یو د خپل ملګري د پوښتنې په اړه یوه محاوره ولیکي او د بلې ورځې د پښتو مضمون په ساعت کې دې و وایي.

| | |
|---|---|
| د خوشحال خټک په ژبه برکت شه | چې ویل کــړه په پښتو لـــه هــره بابه |
| کـــه د نظم کـــه د نثر کـــه د خط دی | په پښتو ژبه مې حـــق دی بې حسابه |



# ادبي معاصر نثر

نظم او نثر دواړه د مفکورو او مفاهیمو د لېږدولو وسیلې دي. نثر د نظم په پرتله ډېر کارول کېږي. لامل یې دا دی چې نثر اسان دی، هر لیکونکی یې لیکلی شي او هر ډول موضوع پکې بیانولای شي. نظم بیا د نثر په مقابل کې ستونزمن دی، ځکه وزن او قافیه پکې اړین دي. نثر د معنا، لفظ او مهال له مخې ډېر ډولونه لري چې یو یې ادبي معاصر نثر دی. په دې لوست کې یې تاسې ته در پېژنو:

که ورځنۍ خبرې په لیکنۍ بڼه وي، په څه نامه یادېږي؟

نثر عربي کلمه ده، د شیندلو او پاشلو معنا لري. په اصطلاحي معنا سره نثر هغه کلام دی چې وزن او قافیه و نه لري. ادب څېړونکي د ادبیاتو د اوسني تعبیر له مخې د یوې ژبې ټول لیکلي (تحریري) او نالیکلي (شفاهي) منظوم او منثور اثار، چې هنري ارزښت ولري، ادبیات ګڼي. دغه ادبي هنري اثر باید په داسې ژبه بیان شوی وي چې هم د ټولنیز ژوند هېنداره وي او هم په لوستونکي او اورېدونکي کې یو عاطفي احساس پیدا کړي.

په هنري او ادبي لیکنو کې د لیکوال ذوق، احساس او تمایلات د واقعیت او مطلب د افادې لپاره بنستیز حیثیت لري.

لیکوال هغه څه چې لیدلي، اورېدلي، احساس کړي او یا یې په ذهن او خیال کې تېرېږي، بیانوي، خو د تحقیقي او علمي لیکنو په څېر دلیل راوړلو ته هېڅ اړتیا نه لري. هنریت یا هنري ارزښت هغه ځانګړنه ده چې ادبي او غېر ادبي لیکنې سره بېلوي. په ادبي لیکنو کې د لیکوال په استعداد او فني مهارت پورې اړه لري چې انساني رواني حالات، د خلکو هیلې او غوښتنې، جذبات، او احساسات او عواطف په الفاظو کې څنګه انځور او راونغاړي، مقابل لوري (لوستونکي یا اورېدونکي) ته یې ولېږدوي او د هغه په عواطفو کې خوځښت راولي. پښتو ژبه ډېر هنري ادبي اثار لري، چې بېلګې یې په نالیکلي او لیکلي ډول په نظم او نثر کې موجودې دي.

په منثورو کې له مسجع نثر نه نیولې د نن ورځې تر روانو، ساده او د هنر او ښکلا په ګاڼه سمبال نثرونه هم شامل دي.

پښتو ادبي نثر له (۱۹۵۰) عیسوي کال نه وروسته وده او پراختیا موندلې ده. ادبي ټوټه، لنډه کیسه، ناول، داستان، رومان، ډرامه، طنز د نني ادبي او هنري نثر بېلګې دي، چې په لاندې ډول یې در پېژنو:

۱_ ادبي ټوټه:

د هنري ادبیاتو یو ځانګړی ډول دی چې د شکل په لحاظ له لنډو کیسو څخه وړه وي او د مضمون په لحاظ هر ډول مطالب پکې راتلای شي. په ادبي ټوټه کې شاعرانه تخیل

کم وي، واقعي پېښې پکې ځېرل کېږي او لوبغاړي يې هم واقعي خلک وي.

د معاصر هنري نثر دغه ډول، ځينو ادبپوهانو د (منثور شعر) په نامه هم ياد کړي، ځکه اصلاً نثر دی، خو شعري کيفيت لري. د يو حقيقت او واقعيت په اړه په حکايوي بڼه په زړه پورې تشريح او توضيح کوي. دا توضيح او تشريح په داسې رنګينو الفاظو کې نغښتې وي چې په بشري احساس او عواطفو ژور اغېز کوي. د ادبي ټوټې غوره بېلګې د پښتو ژبې د معاصر ليکوال او نثر ليکونکي ګل پاچا الفت په غوره نثرونو کې موندلای شو. لکه: دوه جنازې، دوه دهقانان او نور... .

۲_ لنډه کيسه:

په لويديځ ادب کې (Short story) بلل کېږي. لنډه کيسه د نثري کيسو يو ډول دی، لنډه او له داسې عناصرو څخه جوړه وي چې يو له بله سره تړلي او يو د بل تر اغېز لاندې وي. موضوع د خپلو حدودو په چوکاټ کې رانغاړي، بې ضرورته خبرې پکې ځای نه لري. د تاثر او اغېز يووالی پکې يوازينی شرط دی.

۳_ ناول:

ناول د لاتيني ژبې کلمه ده. لغوي معنا يې نوی، تازه او عجيبه څېز دی. په ادبي اصطلاح کې هغې ادبي نثري کيسې يا داستان ته وايي چې له لنډې کيسې څخه لوی او له رومان څخه لنډ وي. په ليکني چوکاټ کې يې طرح، اصلي او فرعي کرکترونه، مکالمې او د کيسې پيل، منځ او پای لري. له لنډې کيسې سره يې توپير په دې کې دی چې هم پکې پېښې په تفصيل سره بيانېږي او هم يې کرکترونه زيات وي.

۴_ رومان:

رومان فرانسوي کلمه ده، په ځينو فرهنګونو کې يې معنا خيالي داستانونه او په ځينو کې د مينې او محبت کيسې راغلي دي. په ادبي اصطلاح کې هغې کيسې ته ويل کېږي

چې له ناول څخه اوږده وي.

د ژوند ډېرې او بېلا بېلې خواوې پکې منعکس شوې وي او د بېلا بېلو پېښو انځور په ادبي قالب کې ځايوي.

د جوړښت په لحاظ له ناول سره دومره توپير نه لري، يوازې د موضوع په انتخاب او د واقعيتونو په څېړلو کې توپير لري. هغه دا چې په ناول کې همېشه واقعيتونه د علمي اصولو له مخې څېړل کېږي، خو په رومان کې په خيالي ډول. يعنې کوشش کېږي چې خيالي واقعات لوستونکي ته په رښتينې بڼه وړاندې کړي.

۵_ داستان:

داستان د حماسي ادب يو ځانته فورم دی. د جوړښت په لحاظ تر وړې کيسې لوی او له ناول څخه وړوکی وي.

څرنگه چې داستان حکايتي بڼه لري، نو د ناول په تناسب يې تخيلي جنبه زياته وي.

په داستان کې د هنري قهرمان پر ژوند پوره رڼا اچول کېږي او د گډون کوونکو شمېر يې هم د وړې کيسې د گډون کوونکو په پرتله زيات وي.

۶_ ډرامه:

له يوناني کلمې (ډراو) نه مشتق شوې چې د عمل او کړنې معنا لري. په ادبي اصطلاح کې هغه ادبي اثر ته ويل کېږي چې د ډيالوگ يا خبرو اترو په شکل ليکل شوی وي او دا خبرې د لوبغاړو په منځ کې روانې وي. يا په بله وينا: ډرامه د يوې ژوندۍ کيسې نوم دی، چې ټول احساسات او جذبات پکې د حرکت او خوځېدو په واسطه څرگندېږي او هره پېښه عملاً په سترگو ښکاري. ډرامه دوې برخې لري: تراژيدي او کمېډي.

په تراژيدي ډرامه کې د هنري اثر پر قهرمان په تراژېدي ډول خبرې کېږي او صحنه داسې تمثيلوي چې ليدونکي غمجن او د تاثر په حالت کې وساتي. په کمېډي کې صحنې په داسې ډول اجرا کېږي چې خلک وخندوي. د ادبپوهانو په نظر ډراماېي وحدتونه (د وخت، ځای او د عمل وحدت) د ډرامې د فن بنسټيز توکي دي.

د جوړښت له مخې ډرامه درې ډولونه لري:

۱ـ د سټېج ډرامه.　　۲ـ راډيوي ډرامه، 　۳ـ تلويزيوني ډرامه (فلمونه او ننداري پکې راځي) هره يوه يې ځانګړې ژبه او وسايل لري.

ډرامه درې برخې: (پيل، اوج او پای) لري.

پيل يې بايد داسې وي چې لوستونکي، اورېدونکي يا ليدونکي له ځانه سره يوسي. د کيسې پيل د کيسې اوج ته لار هواروي. د ډرامې په منځ کې د بېلا بېلو لوبغاړو (کرکټرونو) تر منځ ټکر يا کشمکش را منځته کېږي چې دې ته د ډرامې اوج وايي. دا غوټه بيا د ډرامې په پای کې ايله کېږي يا خلاصېږي.

په پښتو کې لومړۍ ډرامه د عبدالاکبرخان اکبر ((درې يتيمان)) ده چې په ۱۹۲۷عيسوي کال يې ليکلې ده. تر دې وروسته په پښتونخوا او افغانستان کې يو شمېر ليکوالو د ډرامې ليکلو ته مخه کړې ده. د سټېج، راډيو او تلويزيون لپاره ګڼې ډرامې ليکل شوي دي.

۷ـ طنز:

طنز عربي کلمه ده. فرهنګونو د طنز لغوي معنا ناز او کرشمه، پېغور او مسخره کول راوړي. په ادبي اصطلاح کې د هنري ادبياتو يو ډول دی چې په ليکنه کې يې د ليکوال اصلي مقصد نيوکه (انتقاد) وي، خو انتقاد يې د شوخۍ په بڼه او يا په بله وينا د تمسخر په جامه کې نغښتی وي. د وينا لمن او اندازه يې په زړه پورې او د ټوکو ټکالو په شکل وي. زياتره وخت پکې مسايل سرچپه (معکوس) مطرح کېږي. طنز په واقعيت کې هغه ترخه خندا ده چې د ټولنې د خلکو په ناوړه اعمالو، عاداتو، اخلاقو او افکارو باندې کېږي.

۸ـ ادبي راپورتاژ:

د هنري ادبياتو يو ځانګړی ژانر دی. له عادي راپورتاژ سره يې اصلي توپير دادی چې په ادبي راپورتاژ کې د پېښې تعبير، تفسير او تحليل په ادبي او هنري ژبه شوی وي. ددې ډول راپورتاژ ليکونکی پېښو ته په دقيق نظر ګوري او له هغو څخه خپل برداشت د تخيل په ملتيا په خوږه هنري ژبه وړاندې کوي.

۹_ سفرنامه:

په سفرنامه کې سفر کوونکی خپلې خاطرې د قلم په ژبه او د ادب په ادا خوندي کوي او راتلونکو نسلونو ته یې د یادګار په شکل پرېږدي. په نړیوال ادب کې سفرنامې اوږده مخینه لري. په سفرنامه کې دعلمي تحقیقاتو لپاره په زړه پورې مواد پیدا کېږي.

۱۰_ ادبي لیکونه:

دا هغه لیکونه دي چې په ځانګړې ادبي او هنري بڼه لیکل کېږي. په ادبي لیکونو کې یو لړ مهم انتقادي، سیاسي، فلسفي او ادبي مسایل لیکل کېږي. او د ادیبانو تر منځ تبادله کېږي. د لیکنې ژبه یې هنري او د تحلیل رنګ پرې غالب وي. له استعارو، کنایو، تشبیهاتو او نورو ادبي صنعتونو څخه پکې کار اخیستل شوی وي. ژبه یې خوږه او د لیکنې طرز یې دومره په زړه پورې وي چې لوستونکي یې په لوستنه نه مړېږي.

د متن لنډیز:

د اوسني تعبیر په اساس د یوې ژبې ټول لیکني او ګړني، منظوم او منثور اثار، چې هنري ارزښت ولري، ادبیات ګڼل کېږي.

په هنري نثر کې لیکوال ټول مفاهیم د الفاظو په قالب کې په تخیلي ځواک سره ځایوي. دغه تخیلي ځواک په بشري احساس او عواطفو ژور اغېز کوي او را پاروي یې.

هنریت یا هنري ارزښت هغه بنستیزه ځانګړنه ده چې ادبي لیکنې له نورو غېر ادبي لیکنو څخه بېلوي.

معاصرې ادبي هنري لیکنې د بنې له مخې لاندې ډولونه لري:

ادبي ټوټه، لنډه کیسه، ناول، رومان، ډرامه، طنز، ادبي لیکونه، ادبي راپورتاژ او نور... .



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي او مفهوم ته دې ځیر شي.

۲ـ درې تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د متن اصلي مفهوم دې ووايي.

۳ـ څلورتنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او د ادبي معاصر نثر په اړه دې یوه یوه دقیقه خبرې وکړي.

۴ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي، یوه ډله دې په خپل وار سره تراژیدي او دویمه ډله دې یوه کمیډي ننداره د حرکاتو له لارې تمثیل کړي.

۵ـ زده کوونکي دې په څلور ډلو وویشل شي، هره ډله دې د خپل سفر په اړوند یو راپور ترتیب کړي، د ډلې استازی دې د خپلې ډلې په استازیتوب د خپلې ډلې ترتیب شوی راپورتاژ نورو ته ووايي.

۶ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- ادبي هنري نثر له نورو نثري ليکنو سره څه توپير لري؟
- یوه لنډه کیسه له کومو توکو څخه جوړه وي؟
- د ناول او لنډې کیسې توپیر په څه کې دی؟
- ادبي راپورتاژ او ژورنالیستکي راپورتاژ څه توپیر لري؟
- طنز له ډرامې سره څه توپیر لري؟
- څو ډوله ډرامې پېژنئ؟
- ډرامه خپل پیغام څنګه لیدونکو ته وړاندې کوي؟

۷ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د هر ادبي هنري نثر په اړه په لنډیز سره درې درې دقیقې خبرې وکړي.



زده کوونکي دې په کور کې د چاپېريال ساتنې په اړه يو مطلب وليکي چې تر لسو کرښو کم نه وي او د بلې ورځې پښتو مضمون په ساعت کې دې ووايي.

دپښتو معاصر نثر لاندې بېلګه ولولئ او خوند ترې واخلئ.

## بې زړه

د ايمان ځای زړه دی او دی بې زړه دی.

چې وړوکی و، له شيشکو او پېريانو ډارېده، چې لږ غوندې لوی شو د ملا صاحب له ډاره په سبق نه پوهېده.

اوس چې لوی دی، د خان ډار، د ملک ډار، د حاکم ډار يې په زړه کې ټينګ ځای نيولی دی. په لاره کې ورسره د غلو وېره ده او په کور کې د غليمانو له وېرې خوب نه ورځي.

لويه خدايه، په کوم زړه کې چې دغومره ډېرې وېرې وي، ستا وېره ډېره ځای نه شي پيدا کولی.

په دغسې زړه کې ستا خوف ته ډېر لږ ځای پيدا کېږي، که ستا ډار او د ظالمانو ډار په يوه زړه کې يو شان موجود وي، له دې نه لويه ګناه بله نه شته. کاشکې دوی يوازې له تا وېرېدلی او ستا د دښمنانو ډار يې په زړه کې نه وای. د خلکو ډار ستا وېره په زړونو کې کموي او ايمان ته زيان رسوي. ستا ضعيفه بندګان يوازې له تانه، نه وېرېږي، له نورو هم وېرېږي. دوی اوس د زورورو په مخ کې حق نه شي ويلی او نه د حق طرفداري. ته په دروغو خپه کېږې او دوی له وېرې د ظالمانو خدمتونه او صفتونه کوي. هغه مسلمان اوس چېرته دی چې يوازې او بس ستا بنده بايد د ډارېنده نه وي او د نمرود له اوره يې سترګه ونه سوځي. (ګل پاچا الفت)





# ملي ارشيف

لرغوني خطي كتابونه، ليكنې، چاپي كتابونه، د پاچاهانو ليكلي فرمانونه او تاريخي سندونه يو ارزښتمن فرهنگي ميراث دی. دغه ډول اسناد او ليكنې چې د تېرو زمانو د پاچاهانو په اړه معلومات چمتو كوي بايد د يو ارزښتمن فرهنگي ميراث په توگه خوندي وساتل شي. په افغانستان كې داسې اثار په ملي ارشيف كې خوندي دي او په دې اړه (ملي ارشيف) په نامه يوه ځانگړې اداره او ودانۍ هم موجوده ده.

تاسو ملي ارشيف د نوم په اورېدو څه فكر كوئ؟

د نړۍ په هر هېواد کې داسې یو ځای شته چې هلته ټول زاړه خطي کتابونه، چاپي زاړه کتابونه، د تېرو پاچاهانو فرمانونه، رسمي سندونه، انځورونه او نور ساتل کېږي. دغه ځایونو ته ارشیف وایي. زموږ په ګران هېواد افغانستان کې هم دغسې یوه ودانۍ شته چې ملي ارشیف نومېږي. د ملي ارشیف دغه ودانۍ د کابل ښار په سالنګ واټ کې واقع او د امیرعبدالرحمٰن خان د واکمنۍ پر مهال جوړه شوې ده. نوموړي امیر دا ودانۍ د خپل زوی شهزاده حبیب الله خان د کار لپاره جوړه کړې وه. ودانۍ دوه پوړه ده، لومړی پوړ یې تر ځمکې لاندې دوه سالونه او لس خونې لري.

دا ودانۍ د محمد داود خان د جمهوریت په لومړیو (۱۳۵۲هـ.ش.) کې د ملي ارشیف لپاره ځانګړې شوه او د عامه کتابتون تر اداري لاندې یې فعالیت پیل کړ.

ملي ارشیف په رسمي توګه د اطلاعاتو او فرهنګ د وزارت د یوې ځانګړې فرهنګي اداري په توګه په (۱۳۵۹هـ.ش.) کال پرانستل شو. لومړی هغه لیکلي او چاپي تاریخي او هنري اثار چې د کابل په عامه کتابتون او نورو دولتي ادارو کې موجود وو، په ملي ارشیف کې ځای پرځای شول او بیا د هېواد له ګوټ ګوټ څخه اړوند اثار ورته راوړل شول چې دا لړۍ تر ننه هم روانه ده او له یوې ورځې څخه بلې ته د اثارو شمېره زیاتېږي.

ټول هغه اثار چې اوس زموږ په ملي ارشیف کې خوندي دي، د اسلامي دورې له پیلامې څخه په را وروسته پېړیو پورې اړه لري. تر ټولو لرغونې لاس کښلې (خطي) نسخه چې په ملي ارشیف کې خوندي ده هغه د قرآنکریم پنځه پارې دي چې د هوسۍ پر پوستکي لیکل شوي او لیک یې د حضرت عثمان (رض) وخت ته منسوب ګڼل شوی دی.

بل لرغونی سند د تېموري دورې د نومیالي واکمن سلطان حسین بایقرا فرمان دی چې په (۹۰۱هـ.ش.) کال په نستعلیق لیک لیکل شوی، اوس په ملي ارشیف کې خوندي دی. اوس زموږ په ملي ارشیف کې د کتابونو په زرګونو خطي او چاپي نسخې، تاریخي سندونه او انځوریز خطي کتابونه او پاڼې خوندي دي.

په دغو خطي نسخو کې یو هم د پښتو ډېر ارزښتناک ادبي کتاب (پټه خزانه) نومېږي چې د هغې په تر لاسه کېدو سره پښتو لیکلی ادب د دویمې هجري پېړۍ نیمایي ته

رسېږي.

د افغانستان ملي ارشيف له ډېرو زياتو لرغونو او تاريخي چاپي او خطي سندونو او اثارو سره له ستر ملي او نړيوال ارزښت څخه برخمن دی. د افغانستان ملي ارشيف د (سواربيکا) يا د ارشيفونو د نړيوالې مؤسسې د غړيتوب وياړ هم تر لاسه کړی دی.

د تاريخي، علمي، ادبي فرهنگي او نورو اثارو د خوندي ساتنې اداري (ملي ارشيف د بډای کولو لپاره بايد هر اړخيزې هلې ځلې وکړو او يوه ملي دنده يې وبولو.




سواربيکا: د ارشيفونو يو نړيوال تنظيم يا مؤسسه ده چې د ډېرو هېوادونو ملي ارشيفونه يې غړيتوب لري.

د متن لنډيز:

ملي ارشيف زموږ په هېوادکې د لرغونو خطي او چاپي اثارو، تاريخي سندونو او پاچاهانو د فرمانونو او ليکونو د خوندي ساتنې ځانگړې اداره ده.

په دې اداره کې تاريخي ليکلي اثار له خرابېدو او ورکېدو څخه ژغورل کېږي.

امير عبدالرحمٰن خان د ملي ارشيف اوسنۍ ودانۍ د خپلې واکمنۍ په کلونو کې د خپل زوی حبيب الله خان، دکار لپاره جوړه کړې وه. ملي ارشيف په ۱۳۵۲ لمريز کال د محمد داود خان د جمهوريت په لومړيو کې د عامه کتابتون تر اداري لاندې را منځته شو. په رسمي توگه د اطلاعاتو او فرهنگ وزارت د يوې ځانگړې فرهنگي اداري په توگه په ۱۳۵۹ هجري کال پرانستل شو.

ملي ارشيف اوس د زرگونو خطي او چاپي کتابونو، سندونو او نورو اثارو په لرلو سره له ملي او نړيوال اعتبار څخه برخمن او د ارشيفونو د نړيوالې مؤسسې د غړيتوب وياړ هم لري.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي، بیا دې دوه تنه زده کوونکي د لوست مفهوم بیان کړي.

۲ـ څو تنه زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- ملي ارشیف څه اهمیت او ارزښت لري؟
- د ملي ارشیف د لا بډاینې لپاره باید څه وکړو؟
- په متن کې د یادو شخصیتونو نومونه واخلئ؟
- تاسو که د لرغونو توکو د ساتلو کومه بله ودانۍ لیدلې وي، نوم یې واخلئ؟

۳ـ دوه تنه زده کوونکي دې په خپل منځ کې د ملي ارشیف د لیدلو په اړه خبرې وکړي.

په لاندې ډول:

- مرجانې خورې، ته په کوم ښوونځي کې زده کړه کوې؟
- درخانۍ خورې، زه د الایي لیسې زده کوونکې یم.
- په څوم ټولګي کې یې؟
- زه سږکال یوولسم ټولګي ته بریالۍ شوم.
- لوستونه مو پیل شوي دي؟
- هو، دا دریمه اوونۍ ده چې لوست مو پیل شوی دی.
- دا بل هلک څوک دی؟
- دا زما کشر ورور دی.
- تاسو چېرته روان وئ؟
- درخانۍ خورې! زه له خپل ورور سره کابل ته ځم.
- خیر خو دی د څه لپاره؟
- هو، خورې خیر خیریت دی، غواړم چې ملي ارشیف وګورم.

- ملي ارشيف څه شی دی؟
- ولې خورې ته ملي ارشيف نه پېژنې! ملي ارشيف يوه ځانګړې اداره ده چې لرغوني خطي نسخې چاپي اثار او تاريخي سندونه پکې ساتل کېږي.
- دا اداره چېرته موقعيت لري؟
- د ملي ارشيف ودانۍ يا اداره د کابل ښار په سالنګ واټ کې واقع ده.
- ښه نو، په خير لاړه شې، خو ګوره چې له ملي ارشيف نه د ليدنې په مهال لازم او اړين ياداشتونه له ځانه سره واخلې.
- د خدای په امان! دا کار به ضرور کوم.

۴_ درې تنه زده کوونکي دې د تختې پر مخ لاندې لغات په جملو کې استعمال کړي:
(وياړ، اړين، مهال، پرانستل، پېلامه، اړوند، پوړ، ګوټ، چمتو، انځورونه)

۵_ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، يوه ډله دې د ملی ارشيف د ارزښت په اړه او بله ډله دې ددغې ادارې د جوړېدو تاريخ په اړه معلومات وليکي او د ډلې مشر دې د ټولګي په وړاندې بيان کړي.

۶_ دوه تنه زده کوونکي دې په وار سره د لوستل شوي متن لنډ مفهوم بيان کړي.
۷_ که کوم زده کوونکی د امکان په صورت کې کابل ته لاړ، له ملي ارشيف څخه دې ليدنه وکړي، د خپلو ليدنو رپوټ ترتيب او خپلو هم ټولګيوالو ته دې واوروي.



## کورنی دنده

زده کوونکي دې د خپلو مشرانو په مرسته په خپل کور او کلی کې د لرغونو قلمي اثارو او نورو پخوانيو سندونو د شته والي په اړه معلومات را غونډ او د بلې ورځې پښتو مضمون په ساعت کې دې خپلو ټولګيوالو ته ووايي.

## د وطن مينه

زمـوږ په وينودې تـازه شي وچ بـــوستان د وطن
يـوځـل دې ځـار پـه معشوقې شـي عـاشـقـان د وطن

چې تـــــرقي د قام وطـن د ځان زينت وګڼو
خـوب د غفلت نـه دې بـيـدارې شـي زنـان د وطن

نسلونه واړه اينده به محبان وي د قـــام
کـه پـه بـيـدارو پـيـو لـوى شـي فـرزنـدان د وطـن

خويـنـدو د خـداى لـپاره پاځـئ دادى وخـت د همت
وګـورئ ځومره دې قومونه محبان د وطــــــن

ځـاى د تعليم دى ستا جولې اى عزتمندې خـورې!
لـوى هغه زوى کـړه چې سبا شي سخندان د وطـن

که په زيور د قومي عشق موږه سينګار جوړ که خپل
دا مې يقين دى نور به ونــــــــشي نقصان د وطن

د قـوم وطــن عــزت زمــوږه د عــزت مـعـيـار دى
د سـر پـه بـيـه عـزت اخـلـي شـاه زلـمـيـان د وطـن

د غـافـل قـوم نـوم و نـښـان پـه دنـيا نـه دى پـــاتې
تـاريـخ بـه هـيـر نـه کـړي هيڅيرې بـهـادران د وطن

ددې دنيا په مخ هغه خلک ژونـــــدي دې پاتې
چې پـه کوښښ د چا ژونـدون شـي جـاودان د وطن

اخـر تـرڅـو بـه بـې خبـر د قـام لـه حـال يـو داسـې
راځـئ چـې وکـړو لـږ د نـورو نـه پـرسـان د وطن

پـه کـومـه لار دې رسـيـدلـي قافـــــلې د وطن
چـې مـوږ هم بـوځـو پـه هغـه لا رکـــاروان د وطن

کـه د قـران پـاک پـه تعليم مـو کـړې سينې روښانه
وريـځـې د جهل بـه شـي لـرې لـه اســمان د وطن

((سيده بشرى بيګم))





# ښځې او ټولنه








کورنۍ لومړنۍ انساني ټولنه ده، چې له مور، پلار او اولادونو څخه عبارت ده. همدا کورنۍ دي چې له مجموعې یې ټولنه جوړېږي. په ټولنې کې ښځې او نارینه دواړه شته. له یوه پرته د بل په شتون ټولنه بشپړه نه ده. په ټولنې کې ښځې او نارینه یو له بله سره داسې اوبدل شوي دي چې د یو له نشتوالي پرته بل نیمګړی دی. همدارنګه نارینه او ښځې لکه د یوه مرغه دوې وزرې دي، که یو مرغه په یو وزر الوتنه نشي کولای، یوه ټولنه هم د بشپړوالي لپاره نارینه او ښځوته یو شان اړتیا لري.

د ښځې له شتون پرته به یوه کورنۍ او ټولنه څنګه وي؟

لوی څښتن تعالی فرمايي، چې ژباړه يې داسې ده: "ښځې ستاسو لباس او تاسو د هغوی لباس ياست" له پورته وينا څخه څرګندېږي چې ښځه او نارينه يو د بل جزء دی. همدا شان نارينه د ښځې او ښځه د نارينه عيب پټوي او حيا يې خوندي کوي. ويلای شو چې په ټولنه کې ښځې او نارينه يو له بل سره لازم او ملزوم وي. نارينه او ښځې دواړه د ټولنې د ترکيب او جوړښت دوه عناصر دي. که له دې عناصرو څخه يو کمېږي، نو د ټولنې جوړښت ګډوډېږي.

سپېڅلي دين اسلام دواړو ډلو ته په مينې او محبت امر کړی، له کرکې، نفرت، حسد او کينې څخه يې منعه کړي دي او هرې ډلې ته يې بېل بېل حقوق ورکړي او ټاکلي دي.

ښځې د ټولنې نيمايي برخه جوړوي، ارزښت يې له نارينه وو سره برابر دی. د نړۍ پرمختګ د ښځو له برکته دی. د هر بريالي نارينه تر شا يوه ښځه شتون لري. وايي: ((ښځه په يوه لاس زانګو او په بل لاس جهان زنګوي.))

ښځه هغه موجود دی چې د ژوندانه په ټولو برخو کې له نارينه سره اوږه پر اوږه برخه لري. ښځه د کور ډيوه ده، ښځه د مينې او عاطفې جوهر دی، ښځه مور ده او مور د ټولنيزو چارو په ټولو اړخونو کې شريکه ده.

د افغانستان په تاريخ کې د پرله پسې جګړو او ناخوالو له امله ښځو ډېر زيانونه ګاللي دي، ښځه کونډه شوې، ښځه بوره شوې، ښځه وراره شوې، ښځه بې پلاره شوې، که هر څه غم او کړاو په نارينه راغلی، ښځو تر هر چا دمخه او تر هر چا زيات هغه ګاللی دی، د هرې جګړې لومړۍ قرباني ښځه وه.

له دې ټولو ناخوالو سره سره ښځه نه ده تسليم شوې، ښځو اتلولي ښودلې او خپل شهامت يې له لاسه نه دی ورکړی. پر هېواد د پردو د يرغل پر مهال د نارينه وو تر څنګ درېدلې، هغوی ته يې په سنګر کې ډوډۍ، اوبه او کارتوس وړي. که نارينه ټپي شوی د هغه پالنه يې کړې، له هغوی سره يې ورځينو کارونو ته اوږه ورکړې او د دې تر څنګ يې د خپلو اولادونو په روزلو کې هڅه او هاند کړی دی.

زموږ د هېواد د نارينه پوهانو، ليکوالو، شاعرانو او ملي شخصيتونو تر څنګ ښځو

په ټولو يادو برخو کې خپله ورتيا ښودلې او د تاريخ پاڼو کې يې نومونه په زرينو کرښو ليکل شوي دي.

د دې نوميالیو مېرمنو په ډله کې نازو انا، زرغونه انا، عايشه دراني، رابعه بلخي، بي بي نېکبخته، مېرمن الايي، غازي ادې، مېرمن عينو د مېوند اتله ملالۍ، ناهيد او په سلګونو نورې شاملې دي.

نن د تاريخ په دې پړاو کې ښځو خپل غړونه پورته کړي او په ټولنې کې يې خپل دريځ پياوړی کړی. اوس ښځې کولای شي په کابينه کې ګډون وکړي او د وزارتونو په لوړو څوکيو عملاً کار وکړي. ولسي جرګې او مشرانو جرګې ته ځانونه کانديد کړي او څوکۍ ترلاسه کړي. د هېواد د سرنوشت په ټاکلو کې له خپلو نارينه ورونو سره په ګډه پرېکړه وکړي او خپله رايه وکاروي. په ښوونځيو، پوهنتونونو او د هېواد د لوړو زده کړو په موسسو کې زده کړه او يا تدريس وکړي. لنډه دا چې اوس ښځو ته په ټولنه کې د خپل مسؤوليت او دندو د پرمخ وړلو لپاره تر پخوا زياته زمينه برابره شوې ده.

د متن لنډيز:

تاسې په پورتني لوست کې ولوستل چې ښځې د ټولنې نيمايي برخه جوړوي او په ټولنيزو او اقتصادي چارو کې له نارينه وو سره برابره ونډه لري. نارينه او ښځې دواړه د ټولنې د ترکيب او جوړښت دوه اساسي توکي دي. کله چې له دې توکو څخه يو کمېږي نو ټولنه او ژوندون له منځه ځي. که مونږ ټولنه يو الوتونکي وګڼو، نو نارينه او ښځينه به د دې الوتونکي دوه وزرونه وي کله چې دا دوه وزرونه سالم وي، نو الوتونکی په ډېره اسانۍ او ښه توګه سره الوتنه کولای شي. په همدې ډول د ټولنې په جوړښت، ترقۍ او پر مختګ کې هم نارينه او ښځينه دواړه يو شان رول لوبولی شي. د همدې دوو توکو په ګډه همکارۍ، يو بل ته په درناوۍ د يوې نېکمرغه، سوکالې، پرمختللې او رغنده ټولنې جوړېدل ممکن کېدای شي.



## فعالیتونه

۱ـ درې تنه زده کوونکي دې په وار سره پورتنی لوست د کتاب له مخې ولولي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

۲ـ زده کوونکي دې لاندې جملې بشپړې کړي:

ښځې ستاسو (............) او تاسو د هغوی (...............) یاست.

ښځه د ټولنې ............ برخه جوړوي.

ښځه او نارینه یو د بل لپاره د (                ) حیثیت لري.

د هر بریالي نارینه تر شا یوه (                ) شتون لري.

ښځه مور ده او (            ) د ټولنیزو چارو په ټولو اړخونو کې شریکه ده.

۳ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي په ټولنه کې د ښځې په ارزښت دې خبرې وکړي.

۴ـ زده کوونکي دې د متن ستونزمن لغات پرتخته ولیکي او نور زده کوونکي دې په وار سره د هر لغت د معنا په اړه خبرې وکړي.

۵ـ زده کوونکي دې د ټولګي د شمېر په پام کې نیولو سره په ډلو وویشل شي. هره ډله دې د ټولنې په جوړښت کې د ښځو په رول باندې لیکنه وکړي. د ډلې مشر دې د خپلې ډلې نظر ووایي.

۶ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د لوست لنډ مفهوم ووایي



## کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې په خپل ښار، کلي او چاپېریال کې د ښځو او نجونو په وړاندې د ناروا چلند کومه تر سترګو شوې بېلګه ولیکي او د بلې ورځې د پښتو مضمون په ساعت کې دې نورو ته ولولي.



# شاه حسين هوتک




زموږ ګران هېواد، د علم او ادب زانګو ده. ډېر پوهان، عالمان، ليکوال او شاعران يې په خپلې غېږکې روزلي دي. ددې هېواد مشرانو او واکمنانو هم له علم او ادب سره مينه ښودلې او په دې توګه يې خپل نومونه ياد ساتلي دي. شاه حسين هوتک له دغو واکمنانو څخه يو و. هغه د عالمانو او ليکوالو درناوی کاوه، په درنه سترګه يې ورته کتل او په خپل دربارکې يې ځای ورکړی و. محمد هوتک د شاه حسين د دربار منشي و، چې پخپله يو عالم، ليکوال او شاعر سړی تېر شوی. محمد هوتک د شاه حسين په امر (پټه خزانه) وليکله، چې د يو شمېر پخوانيو پوهانو ليکوالو او شاعرانو د ژوند احوال او د اثارو بېلګې يې پکې راټولې کړې دي.

ايا تاسو تر اوسه د پټې خزانې نوم اورېدلی دی؟

د ملي مشر میرویس نیکه په زامنو کې د ده یو زوی میر حسین او یوه لور زینبه هم د پښتو ژبې تکړه شاعران و و.

میر حسین چې وروسته بیا په شاه حسین مشهور شو، په (۱۱۱۴هـ.ق.) کال د زابل په (سیوري) سیمه کې زېږېدلی دی. شاه حسین تر دولس کلنۍ پورې د وخت دودیز علوم لکه: فقه، تفسیر، منطق، بلاغت او ادبي فنون د هغه وخت له مشهور عالم ملا یار محمد هوتک څخه زده کړل. تر هغه وروسته مستقیماً د خپل ښاغلي پلار تر روزنې لاندې راغی. ولسي مشرتابه چلند او د هېواد د اداري چارو سمبالول یې له خپل پلار څخه زده کړل. څوارلس کلن و چې دپلار د مهربانۍ له سیوري څخه بې برخې شو. کله چې د ده مشر ورور شاه محمود هوتک په (۱۱۳۵هـ.ق.) کال د اصفهان د نیولو لپاره ایران ته لاړ، نو په کندهار کې یې شاه حسین پاچا کړ.

شاه حسین هوتک یو شاعر طبعیته او علم پالونکی پاچا و. په دربار کې یې عالمانو، ادیبانو او شاعرانو ډېر غزت او لوړ مقام درلود. له خلکو سره یې په مهربانۍ او زړه سوي چلند کاوه. له علم سره د شاه حسین مینه او ادبپالنه تر دې کچې وه چې په هره اوونۍ کې به یو وار په سلطنتي کتابتون کې یو علمي او ادبي مجلس او کله مشاعره جوړېده. هغې ته به یې د کندهار عالمان، مشهور ادیبان او شاعران بلل او هغه ورځ به یې په علمي او ادبي بحثونو او د شعرونو په اورېدلو تېروله. د (پټې خزانې) ارزښتمن کتاب د ده په امر ولیکل شو. همدارنګه د ده په امر کاتبان پېښور ته ولېږل شول چې د رحمان بابا له دیوان څخه څو نسخې را نقلې کړي او کندهار ته یې راوړي. کوم کارونه چې د هېواد د فرهنګي ودې په اړه د ده د حکومت په پېر کې شوي دي د زیاتې مننې او یادونې وړ دي. شاه حسین هوتک پښتو او فارسي شعرونه ویلي دي. یو مرتب او بشپړ دیوان یې درلود. له عالمانه او شاعرانه شخصیت سره سره له پوځي او عسکري وړتیا څخه هم بې برخې نه و. د ده د سلطنت په موده کې وروسته نادر شاه افشار پر کندهار حمله وکړه. څه د پاسه یو نیم کال یې د نادرشاه لوی لښکر پرې نښود چې د کندهار ښار ته ننوزي. شاه حسین د مېړانې له امله نادري ځواکونو ونشول کړای په یو نیم کال کې د کندهار د ښار یوه کلا هم فتح کړي.

شاه حسین هوتک په کندهار کې تر پنځلس کلنې واکمنۍ وروسته د (۱۱۵۱) هجري

کال د برات میاشتې په لسمه په مازنداران کې وفات شو. د شاه حسین هوتک یو غزل چې محمد هوتک په پټه خزانه کې را اخیستې ده، دلته د ده د کلام د نمونې په ډول راوړو:

| | |
|---|---|
| بېلتانه دې د غمو په چپاو چور کړم | په تیارو کې د هجران یې له تا دور کړم |
| بېلتانه دې هسې اوښکې را خپرې کړې | ستا د فکر په ګرداب کې تل عبور کړم |
| د فراق پرې مې کښېوت ومرۍ ته | په جهان کې یې رسوا لکه منصور کړم |
| په وصال دې هم ناښاد یمه دلبرې | د بېلتون فکر په زړه کې ناصبور کړم |
| د باڼوغشی مې وخوړ په ځیګر کې | غمازانو په غمزو غمزو مهجور کړم |

خلق یاد زما د عشق په لېونو کا

زه (حسین) محبت هسې مشهور کړم

د متن لنډیز:

د میرویس نیکه په اولادونو کې شاه حسین هوتک او زینبه د پښتو ژبې شاعران و و. شاه حسین هوتک د زوکړې کال (۱۱۱۴هـ.ق.) ښودل شوی دی. په دولس کلنۍ کې یې د وخت دودیز علوم د هغه وخت له مشهور عالم ملا یار محمد خان هوتک څخه زده کړل. له هغې وروسته د خپل پلار تر روزنې لاندې راغی. څوارلس کلن و چې له پلارني سیوري څخه بې برخې شو. کله چې یې ورور شاه محمود هوتک د اصفهان د نیولو لپاره ایران ته ولاړ، نو شاه حسین هوتک په کندهار کې پاتې شو. دی عادل او مدبر پاچا و. دربار ته یې عالمانو، شاعرانو او فضلاوو لار درلوده. کوم کارونه چې د هېواد د فرهنګي ودې په اړه د ده د واکمنۍ په دوران کې شوي دي، د زیاتې مننې او یادونې وړ دي. شاه حسین هوتک په پښتو او فارسي شعرونه ویلي دي. د شعر یو مرتب او بشپړ دیوان هم لري. د عالمانه او شاعرانه شخصیت تر څنګ له پوځي او عسکري مهارت څخه هم بې برخې نه و. پر کندهار د نادر افشار تر تاړاکونو پورې په کندهار کې پاچا و. له ښار څخه یې په مېړانې دفاع کوله. کله چې د نادر افشار ځواکونو کندهار ونیو، شاه حسین هوتک یې اثیر او مازندران ته ولېږه. په (۱۱۵۱هـ.ق.) کال کې مسموم او هلته مړ شو.



## فعالیتونه

۱ــ د زده کوونکو له ډلې څخه دې څو تنه لاندې پوښتنو ته ځواب ووايي:

- د میرویس نیکه په اولادونو کې څوک د پښتو ژبې شاعران وو ؟
- د (پټې خزانې) ارزښتمن کتاب د چا په امر ولیکل شو ؟
- شاه حسین هوتک د کوم مشهور عالم څخه زده کړې وکړې ؟
- شاه حسین هوتک څو کلن و چې پلار یې مړ شو ؟
- شاه حسین په کوم کال او چېرته زېږېدلی دی ؟
- شاه حسین هوتک په کوم کال، چېرته مړ شو ؟

۲ــ درې تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د شاه حسین هوتک د شخصیت په اړه دې خبرې وکړي.

۳ــ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي په وړاندې لاندې لغات معنا او په جملو کې استعمال کړي:

واکمن، لرغونی، اړوند، کچې، کتابتون، وده، بشپړ، ځواکونه، چور، پری.

۴ــ دوه تنه زده کوونکي دې پورته نظم په لوړ اواز او شعري لحن سره ووايي.

۵ــ درې تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د منظوم متن اصلي مطلب دې نورو ټولګیوالو ته بیان کړي.

۶ــ دوه تنه زده کوونکي دې د متن په اړه خبرې اترې سرته ورسوي.

۷ــ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، یو یو بیت دې په تخته ولیکي او د تشبیه طرفین دې پکې وښیي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د شاه حسین هوتک د ادبي شخصیت په اړه یوه مقاله ولیکي او د بلې ورځې د پښتو مضمون په ساعت کې دې ټولګیوالو ته واوروي.



# ټولنه او نوی نسل

هره ټولنه له ماشومانو، پېغلو، ځوانانو او زړو ښځه جوړه شوې ده. هريو يې پر خپل ځای ډېر ارزښت لري. ماشومان د سبا ورځې مېندې او پلرونه دي، هغوی سمې او سالمې روزنې ته اړتيا لري. پېغلې او ځوانان د عقل او متې زور لري. هغوی د يوې ټولنې د ملا تير جوړوي.

که سم و روزل شي، د ټولنې ښه معماران به وي، که پام ورته نه وي شوی، نو کېدای شي د ټولنې بنسټونه ونړوي او پر بله يې واړوي. مشرانو او زړو خلکو تر شا ډېرې تجربې او د ژوند خوږې او ترخې پرېښې دي. هغوی د درناوي وړ دي.

پېغلې او ځوانان څنګه د يوې ټولنې بنسټ ټينګولای شي؟

ځوانان او پېغلې د یوې ټولنې د ملا تیر جوړوي. هغوی د ټولنې تر ټولو ستر او ارزښمن پوړکی دی. څومره چې هغوی په ښوونه او روزنه ښه سمبال وي، څومره چې یې روزنه او تربیه رغنده او سالمه وي، څومره چې د ټولنې د خوا خوږۍ احساس ورسره وي، په هماغه اندازه به یې د ټولنې لپاره ارزښت او اهمیت زیات وي. د ټولنې لوړوالی او ځوړوالی د پېغلو او ځوانانو په سمې روزنې، نېکو اخلاقو او لوړ احساس پورې اړوند دی. په یوې ټولنې کې د ناخوالو په وړاندې بې توپیره پاتې کېدل د پېغلو او ځوانانو ارزښت را ټیټوي. پېغلې او ځوانان ستر رسالت پر غاړه لري. هغوی دنده لري چې ټولنه سمې لارې ته رهبري کړي. په ټولنې کې زړو ناسمو دودونو او رواجونو ته د پای ټکی کېږدي. د بېلګې په توګه وګورئ، افغاني ټولنه له یو لړ ناوړه دودونو سره لاس او ګرېوان ده، پېغلې په بدو کې ورکول کېږي. پېغلې او ځوانان له خپلې خوښې پرته یو بل ته ودېږي. په ودونو او مړو کې ملا ماتوونکي دودونه او رواجونه سرته رسېږي او همداسې نور نامنلي او ناګڼلي دودونه او رواجونه. پېغلې او ځوانان باید له خپلو مشرانو سره کېنښېني او له هغوی سره ددې دودونو د منفي او ناوړه اړخونو په اړه خبرې وکړي او هغوی ته روښانه کړي چې نننۍ ټولنه نوې غوښتنې او نوی ژوند غواړي. اوس نړۍ د یو کلي بڼه غوره کړې ده. د یوې ټولنې دود او فرهنګ ډېر ژر په یوې لارې نه په یوې لارې پر بلې ټولنې اغېز کوي.

د نشه یي توکو په کارونې کې یو شمېر ځوانان بې توپیره پاتې شوي دي. په داسې حال کې چې دوی کولای شي په کلکه د هغې مخه ونیسي او پرې نږدي چې پېغلې او ځوانان په هغې روږدي شي.

راځئ چې په ګډه د استاد ګل پاچا الفت د (نوي نسل) تر سرلیک لاندې نثر ولولو او خوند ترې واخلو:

"له ځمکې نه بخار پورته شو. له بخارنه وریځ پیدا شوه. له وریځې نه باران و ورېده. له بارانه د پسرلي ګلونه پیدا شول. له ګلونونه خوشبويي پیدا شوه.

وګورئ! مور او لور یا پلار او زوی څومره فرق لري؟

هغه تفاوت چې د باران او ګلونو یا د ځمکې، اوبو او بوټو تر منځ وینئ، د یوه او بل نسل هغه تفاوت همدومره دی. که اولادونه مېندو غوندې وای، نو له غرونو څخه به لعلونه، نه پیدا کېده.

له دریابونو څخه به مرغلرې نه راوتلې. له ابشارنه به برېښنا نه راتله. د ړندو اولادونه به ړانده وو. له کڼو نه به کاڼه زېږېدل.

اوس پوه شوئ! چې نوی نسل او زوړ نسل یو رنګه نه وي.

که څوک خپل زوی ته زړه بوږی په نکاح اخلي یا خپله پېغله لور اتیا کلن بوډا ته ورکوي، ښه نه کوي. زړه تربیه او نوی نسل همدغسې وګڼئ"

د متن لنډیز:

پېغلې او ځوانان د یوې ټولنې په جوړښت کې ارزښتمن او مهم رول لري. په دې معنا، همدا پېغلې او ځوانان دي چې د ټولنې جوړښت ساتي او ټینګوي یې. دوی باید سم وروزل شي، ارزښت او اهمیت ورته په ګوته شي، خپل مسوولیتونه او دندې و پېژني او خپل راتلونکي ژوندکې دې جوړښت ته په ارادي ډول وګوري او خپل مسؤولیت سرته ورسوي.

پردې ټکي پوهېدل اړین دي چې د بامسؤولیته ځوان نسل د رامنځته کولو لپاره لا له هماغه کوچنیوالي او ماشومتوب څخه د هغوی سمې او رغندې روزنې ته بشپړ پام وشي او په مسؤولیت وروزل شي، که نه نو خدای مه کړه بیا به وخت تېروي او د لاس موښل به د ټولنې د جوړښت له شلېدو پرته بل څه لاس ته رانه وړي.

## فعالیتونه

۱ـ درې تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي، په یوې ټولنې کې د ځوان نسل په رول دې خبرې وکړي.

۲ـ یو زده کوونکي دې متن په لوړ اواز ولولي نور زده کوونکي دې مطلب ته ځیر شي.

۳ـ دوه تنه زده کوونکي دې په وارسره د لوستل شوي متن لنډ مفهوم بیان کړي.

۴ـ دوه تنه زده کوونکي دې په یوې ټولنه کې د مشرانو په رول باندې خبرې وکړي.

۵ـ زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې له ځوان نسل او مشرانو څخه خپلې غوښتنې او د هغو ځوابونه ولیکي او د ډلې استازی دې د نورو په وړاندې ولولي.

۶ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- کورنۍ تربیه او روزنه د ځوانانو په ژوند څه اغېز لري؟
- د ټولنې په اړوند د یو ځوان مکلفیت به څه وي؟
- ایا یوازې کورنۍ د ځوانانو پر روزنې اغېز لري، که نور لاملونه هم شته؟
- د با مسؤولیته ځوان نسل درامنځته کولو لپاره باید څه وکړو؟
- دوه تنه زده کوونکي دې د (نوي نسل) نثر لنډ مفهوم نورو ته ووايي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې ((د یوې ټولنې په ودانۍ او پرمختګ کې د ځوان نسل اغېز)) تر سرلیک لاندې یوه مقاله ولیکي چې تر لسو کرښو کمه نه وي او ټولګي ته دې راوړي.

هڅه دې وشي چې مقاله ادبي رنګ ولري.

زغم لویه زړورتیا ده.



# علامه پوهاند عبدالشکور رشاد



د پښتو ادبیاتو په معاصر تاریخ کې ځینې داسې نومیالی څېرې شته چې په خپلو نه ستړې کېدونکو هلو ځلو سره یې د هېواد د فرهنګ، ادبي او تاریخي ویاړونو د خوندي ساتلو په لاره کې له ویاړه ډک ګامونه پورته کړي دي. د دې څېرو یاد تلپاتې دی او په ژبه او ادب کې ځانګړی مقام لري. په دې لوست کې به د یو درانه لیکوال، شاعر، تاریخپوه او څېړونکي، د ژوند او کار په اړه معلومات درکړو.

ـ تاسې د پوهاند عبدالشکور رشاد نوم اورېدلی دی؟ د هغه په اړه څه معلومات لرئ؟

پوهاند عبدالشکور رشاد یو نومیالی لیکوال، پېژندل شوی نامتو عالم، څېړونکی، ادیب، تاریخ پېژندونکی او خوږ ژبې شاعر دی.

عبدالشکور رشاد د عبدالغفور خان زوی او پر (۱۳۰۰) لمریز کال په کندهار کې زېږېدلی دی. دی لا وړوکی و، چې قرآن عظیم الشان او د وخت د دودیزو علومو یو شمېر کتابونه یې لوستي و، خو رسمي زده کړې یې په (۱۳۰۶) لمریز کال د گنج په نامه د کندهار په یوه لومړني ښوونځي کې پیل کړې. د ښوونځي له فراغت وروسته په (۱۳۱۲) هجري کال د کندهار په مطبعه کې د پښتو مجلې د مصحح په توگه وټاکل شو او دا یې د لومړنۍ رسمي دندې پیل و. څرنگه چې استاد له تدریس سره زیاته مینه درلوده او هیله یې دا وه چې ښوونکی شي، نو د (۱۳۱۴) لمریز کال د لړم میاشتې په دولسمه نېټه د کندهار په دویم لمبر ښوونځي کې ښوونکی شو. دا وخت یې عمر ډېر کم و، نو ځکه د کوچني معلم په نوم مشهور شو. تر (۱۳۲۱) هجري کال پورې په احمدشاهي ښوونځي او د احمدشاه بابا په لېسه کې کله د ښوونکي او کله د سرښوونکي په توگه دنده ترسر کوله. په (۱۳۲۷) لمریز کال استاد د پوهې او لوړو زده کړو د تر لاسه کولو لپاره په خپل شخصي لگښت هند ته لاړ او تر ۱۳۳۴ لمریز کال پورې یې په هغه هېواد کې د ژبو، ادبي فنونو او تاریخي مسایلو په باب مطالعې او زده کړې وکړې. استاد په هند کې او وه کاله پاتې شو. په دې او وه کلنه موده کې یې پرله پسې څېړنو او مطالعې ته زور ورکړ او د هغه هېواد د تاریخ له مخې یې په هند کې د افغاني واکمنیو په حال ځان خبر کړ او په سلگونو پاڼو یې په دې موضوع لیکنې وکړې چې لودي پښتانه او سوري پښتانه تاریخي کتابونه یې د همدې سفر د څېړنو پایلې دي.

کله چې استاد له هندوستان څخه بېرته هېواد ته راستون شو، د هغې مینې له امله چې له علمي څېړنیزو چارو سره یې لرله پښتو ټولنې (پښتو اکاډمۍ) ته مراجعه وکړه او ددغې ټولنې مسلکي غړی او مرستیال شو. استاد په همدغه وخت کې د کابل پوهنتون د ادبیاتو او بشري علومو په پوهنځي کې تدریس هم کاوه. اروانښاد رشاد د علمي وړتیا پر بنسټ په ۱۳۴۱ هجري کال کې د لیننگراد په پوهنتون کې د پښتو څوکۍ د استاد په توگه

کار کړی دی. استاد په دې موده کې د تدریس تر څنګه علمي څېړنې هم کولې. هېواد ته له راستنېدو وروسته د ۱۳۴۳ لمریز کال د تلې په میاشت کې د کابل پوهنتون د ادبیاتو او بشري علومو په پوهنځي کې د استاد په توګه ومنل شو. فاضل استاد علامه رشاد پر پښتو سربېره په دري، عربي، انګلیسي، روسي، اردو، جاپاني ژبو باندې هم پوهېده. اروابناد رشاد د خپل ژوند په اوږده بهیر کې په پښتو او دري ژبه یو شمېر اثار او مقالې لیکلي او خپرې کړي دي. هغه په بېلا بېلو علمي موضوعاتو لکه: ژبپوهنه، ادبیاتو تاریخ، هنري نثر، ادبی فنون، غوره اشعار او نورو کې په لس ګونو کتابونه او په شلګونو توکه څېړنیز قلمي اثار لیکلي دي.

ځینې یې دادي:

لودي پښتانه، سوري پښتانه، د څمکنو میا عمر، د پاني پت قهرمان، د خیرالبیان لغتونه، د پټې خزانې فرهنګ، د احمد شاه بابا د دیوان غوره چاپ، لس مقالې او نور... .

نا چاپ اثار: زیات شمېر نور اثار یې تر اوسه نه دي چاپ شوي چې مهم یې: لودي پښتانه دویم ټوک، سوري پښتانه دویم ټوک، ملي قهرمان، غازي اکبر خان، سردار محمد داود خان شهید، اعلیحضرت امان الله شاه غازي، د کارنامو مېړمنې دي.

اروابناد رشاد د (۷۰) کلنو علمي، څېړنیز او فرهنګي خدمتونو له تر سره کولو وروسته، د ۱۳۸۳ لمریز کال د لیندۍ میاشتې په یو ولسمه د (۸۳) کالو په عمر له دې فاني نړۍ سترګې پټې کړې.

جنازه یې په ډېر درنښت د کندهار پوهنتون په انګړ کې خاورو ته وسپارل شوه.

د استاد لاندې شعر ولولئ خوند ترې واخلئ:

حریت

د مجنون ژوندون به څه وي چې لیلا مري
څه په کار دی تش کالبد چې زړه د چا مري
زړه ډیوه ده دا د ختو په قالب کې
خدای و مه کړه چې به دا ډیوه د چا مري
چې مرغه لاړ شي قفس د ماتېدو دی
که به زړه مري تش ګوګل دې لا پخوا مري
هېڅ ممکن نه دی پایښت د هغه پرې (بدن
زړه چې مري کالبوت مجبور دی خامخا مري
(حریت) د هر ملت د بدن زړه دی
که دا نه وي، هم ملت مري هم بقا مري
(پوهاند عبدالشکور رشاد)

د پوهاند عبدالشکور رشاد د هنري نثر دا لاندې بېلګه هم وګورئ او مفهوم ته یې ځیر شئ.

## جبار غازي

زموږ کور د کندهار د احمد شاهي ښار د بابړو په کوڅه کې و، د کوڅې په خوله کې لومړی دوکان د علي مامدکاکو و. تازه مېوې به یې خرخولې. ور پسې دوکان د غازي و.

غازي شکرې، لوزونه، کولچې او شابرې خرخولې، کله کله به یې بادامي نکل او خمیرصندل هم راوړي و. زموږ د کور کوچنیانو ته به مشرانو هر سهار دوې دوې ایکۍ ورکولې، ایکۍ پارسیوانانو پیسه بلله او د کابلۍ روپۍ شپېتمه برخه ارزښت یې درلود.

موږ به خاښت مهال د غازي دوکان ته تلو او په دغو ایکیو به مو شکرې او لوزونه را نیول.

ښه مې په یاد دي په دغو خوړو کې یو ډول شکرې وې، چې ژبې به مو بللې او په ښتلو ښتلو به خوند ځنې اخیسته کېده.
یوه ورځ چې زه د شکریو د رانیولو لپاره د کوڅې خولې ته ولاړم، که ګورم د علي مامدکاکو د دوکان مخې ته ګڼه ګونه جوړه ده، خلک را ټول دي او د ګڼې ګونې مرکز ته د رسېدلو لپاره زورونه وهي. زما ځخه د غازي دوکان ته د رسېدلو هڅه پاته شوه، د علی مامد کاکو د دوکان د ګڼې ګونې د معلومولو په تلاش کې شوم. زه دغه وخت څلورکلن هلک وم. د خلکو د پښو تر منځو مې په ډېر زحمت ځان د ګڼې ګونې مرکز ته ورساوه.
که ګورم هلته یو سپین ږیری سړی د علي مامد کاکو د دوکان مخې ته د غوړیو پر یو تش ټیم ناست دی. خلک یې په ډېر ادب لاسونه مچوي، دعاوې ځنې غواړي. دی هم چاته دعا ورکوي، چاته چټې ورکوي، یعنې پر اوږو یې په سپکه څپېړه ټپوي.
عجبه داده چې دغه پر خلکو ګران سړي کمیس نه و اغوستی پر لڅ ځان یې صدرۍ اغوستې و، بر بنډ موټان او په وېښتو پټ ځیګر یې ښکارېدل، ما تر دغه وخته پورې داسې څوک نه و لیدلی، چې پر لوڅ ځان دې یې صدرۍ اغوستې وي.
زه هیښ پیښ تللی وم او په خورا حیرت مې بې کمیسه سپین ږیري ته کتل.
د بې کمیسه سپین ږیري د لاس مچولو مسابقه اوږده شوه. ما له ګڼې ګونې ځخه د راوتلو هڅه پیل کړه، خو له ګڼه ګوڼي راوتل را ته ګران و. علي مامد کاکو زما په ترهورتیا پوه شو. په غېږ کې یې را واخیستلم او تر ګڼې ګونې را وایستلم. تر ګڼې ګونې چې را ووتلو، علي مامد کاکو زه له غېږې کښته کړم. ما علی مامد کاکو وپوښتېده: دا څوک دی؟ علی مامد کاکو را ته وویل:
دا جبار غازي دی. د میوند درنې غزا (د برات اووه لسمه کال ۱۲۹۷ هجري قمري) را هیسې دی کمیس نه اغوندي، دغه وخت د مېوند د درنې غزا شپږڅلویښت کاله تېر شوي و.
ما علی مامد کاکو ته په خورا مهربانۍ وویل: ولې نو کمیس نه اغوندي؟
علی مامد کاکو را ته وویل:
ده د مېوند په درنه غزا کې یو بدمرغه انګریز سپاهي را ځملولی و، غوښته یې چې د هغه په وینو د جنګ ډاګ سور کړي. بل انګریز سپاهي جبار غازي تر لمنه ونیوه او په

داسې زور يې کش کړ، چې د غازي له منګولو يې څملولی ښکار خوشې شو او په منډه يې ځان د غازي له توري بچ کړ. خشمېدلی غازي چې پر خلاصونکي انګريز سپاهي مخ راوګرځاوه، هغه ځان د غازي د توري له زده (وهلو) ژغورلی و. خشمېدلي غازي ګرېوان تر لمنې څېرې کړ، لستوڼي يې وشکول، کميس چې يې وغورځاوه ويل يې: بيا دې په خدای که واغوندم، ته بدمرغه که نه وای انګرېز کافر به مې ولې له لاسه ووت.

ما علي مامدکاکو ته وويل: خلک يې لاسونه ولې ورمچوي او دعاوې څنګه ځنې غواړي؟

علي مامدکاکو راته وويل: دا خو غازي دی، د خدای په لاره کې سر ورکولو ته حاضر شوی و. خدای ﷻ خو د دغسې سرتېرو توريالیو نازونه اخلي. د ده خواست نه ردوي، ځکه نو خلک د تبرک لپاره د ده لاسونه مچوي او د ده په روی له خدايه مرادونه غواړي.

له دې صحنې درې شپېته کاله تېر شوي و، چې افغانو غازيانو د خدای ﷻ په فضل سره، سره پوځونه مات کړل او خونخواره مهاجمين يې په ژېړ مخ د افغانستان له خاورې وايستل.

د متن لنډيز:

پوهاند عبدالشکور رشاد د پښتو ادبياتو د معاصرې دورې يو نوميالی اديب، مشهور ليکوال او خوږ ژبی شاعر دی.

د ژبې، ادب، تاريخ په بېلا بېلو موضوعاتو کې يې په لسګونو کتابونه ليکلي دي، چې ځينې يې چاپ او ځينې يې ناچاپ او په قلمي ډول موجود دي او د پښتو بڼ پرې ښکلی دی.

استاد د خپل عمر په اوږدو کې د پښتو ژبې او ادب او د خپل هېواد د خدمت لپاره په سوونو شاګردان روزلي دي او د ټولو پوهو افغانانو په تېره تېره ځوانانو ته يې د يو ژوندي کتابتون مثال درلوده.

پوهاند رشاد د عمر تر پايه پورې خپل هېواد، خپلې ژبې او خپلو خلکو ته رښتينی خدمتګار پاتې شوی. په اوو ژبو پوهېده، لوستل او ليکل يې پرې کولای شول.

ده د خپل ژوند په اوږده بهير کې په لس ګونو ټوکه ډېر ارزښتمن څېړنيز اثار او

په پنځه ګونو ټوکه غوره اشعار او شل ګونه ټوکه څېړنيز قلمي اثار په پښتو او دري ژبه افغان ولس ته په ميراث پرې ښي دي.
په ۱۳۸۳ لمريزکال د (۸۳) کالو په عمر يې له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې.
جنازه يې له کابل څخه کندهار ته ولېږدول شوه او د کندهار پوهنتون په انګړ کې په ډېر درنښت خاورو ته وسپارل شوه.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي او بيا دې په وار سره يو يو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راشي، د پوهاند رشاد د ژوند او اثارو په اړه دې نورو ټولګيوالو ته معلومات ورکړي.

۲ـ دوه دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، د موضوع په اړه دې يو له بله سره خبرې وکړي، بېلګه:

اجمل: اتله! ته د استاد رشاد شاګرد يې؟

اتل: هو! زه د پوهنځی په لومړي ټولګي کې د رشاد صاحب شاګرد وم.

اجمل: تاسو ته يې د کوم مضمون تدريس کاوه؟

اتل: رشاد صاحب موږ ته د ژبپوهنې مضمون درس راکاوه.

اجمل: تا د استاد عبدالشکور رشاد ليکنې لوستي دي؟

اتل: هو! ما د هغه دوه مقالې په کابل مجله کې لوستې دي.

اجمل: د استاد چاپ شوي کتابونه درمعلوم دي؟

اتل: هو! هغه څو چاپ شوی اثار لري، ما يې د پټې خزانې فرهنګ په نامه اثر لوستی دی.

اجمل: اورېدلي مې دي چې د استاد ډېرې ژبې زده وې.

اتل: استاد رشاد سربېره په پښتو ژبه، پر عربي، فارسي، اردو، روسی، سنسکریټ او

جاپاني هم پوهېده.

اجمل: د استاد چاپ شوي اثار په کومو ژبو دي؟

اتل: استاد رشاد په پښتو او دري ژبو چاپ شوي اثار لري.

۳ـ دوه تنه زده کوونکي دې په وار سره د (حريت) تر سرليک لاندې شعر لنډ مفهوم بيان کړي.

۴ـ زده کوونکي دې په څو ډلو ووېشل شي، هرې ډلې ته دې دنده ورکړل شي چې په متن کې ځانګړي نومونه، جنس نومونه، عام نومونه او جمعيت نومونه سره بېل کړي او د ډلې مشران دې د ټولګي په وړاندې د خپل ګروپ نظر وړاندې کړي.

۵ـ زده کوونکي دې د لاندې کلمو معنا پيدا او د تختې پر مخ دې په جملو کې وکاروي:

ستونزه، ډيوه، پړي، حريت، بنسټ، بهير، لورېينه، چمتو، څېړنيز، نړۍ، صدرۍ، ايکۍ، ګڼه ګوڼه، هيبتن پيښن.

۶ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره نظم په لوړ اواز ووايي.

۷ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- پوهاند رشاد د پښتو ادبياتو د کومې دورې په ليکوالو کې راځي؟
- استاد ولې په کوچني معلم سره يادېده؟
- د استاد د درې چاپ او درې نا چاپ اثارو نومونه واخلئ؟
- د استاد رشاد جنازه چېرته خاورو ته وسپارل شوه؟

۸ـ دوه تنه زده کوونکي دې د استاد رشاد په چاپ شوو اثارو خبرې وکړي.

۹ـ دوه تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي په وړاندې د جبار غازي نثر لنډ مفهوم بيان کړي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د استاد رشاد د (حريت) تر سر ليک لاندې شعر ولولي، لنډ مفهوم دې يې وليکي او په بله ورځ دې ټولګيوالو ته ووايي.





# کیسه

کیسه د انسان له پیدایښت نه تر نن پورې د انساني ژوند یو اړین توک گرځېدلی دی. ډېرې داسې رښتینې او جوړې شوې کیسې شته چې روزنیز، اخلاقي او معلوماتي مفاهیم پکې نغښتې وي. اورېدل او لوستل یې اورېدونکو او لوستونکو ته روزنیزې ښېگڼې لري. د ژوندانه، اخلاقو، کړو وړو او عاداتو په سمون کې ډېره مرسته کوي. ځینې کیسې داسې وي چې په یوه ولس او یا یوې ټولنې پورې اړوندې وي، خو ځینې نورې بیا په ټو ولسونو او بېلا بېلو ټولنو کې شریکې وي. کیسه که په یوه ولس پورې اړه ولري یا ډېرو پورې، خو له اخلاقي ښېگڼو څخه یې ټول ولسونه په خپل ژوندانه کې گټه اخستلای شي.

په دې لوست کې به یوه روزنیزه کیسه ولولئ:

تاسو د خپلو مشرانو له خولې څخه کومه کیسه اورېدلې؟

یوه عالم د یوه پاچا په وړاندې خبرې کولې، ناگهانه یې د خبرو په منځ کې و ویل: (په هندوستان کې یوه ونه ده، که مېوه یې څوک وخوري، نو سړی نه زړېږي او نه مري.) پاچا چې دا خبره واورېدله، نو پر هغه ونې مین شو. سودا واخیست چې دا به څه رنگه پیدا شي، خو له هغه عالم نه یې پوښتنه نه کوله چې دا ونه به چېرته او څنگه وي. پاچا خپل باوري سړی هندوستان ته ولېږه او ډېر مال یې ورته ورکړ. ورته ویې ویل: دا پېسې له ځانه سره واخله، دا دولت لگوه او نورې به هم درولېږم. تر هغه مه راځه چې ددغې ونې مېوه دې نه وي راوړې. سړی روان شو. هندوستان ته ورسېده. له هر چا به یې پوښتنه کوله، هغه ونه په کوم ځای کې ده چې سړی یې مېوه وخوري، نو بیا همېشه ژوندی وي او نه زړېږي؟ خلکو به د دې خبرو په اورېدو خندل، چا به ورپورې ټوکې کولې، چا به ویل دا لېونی شوی دی. چا به ویل موږ ته معلومه نه ده. ځینو فکر کاوه کېدای شي دا ونه چېرته وي، ځکه چې دا سړی ور پسې گرځي. یو شمېر به ویل که وي، نو په پلاني ځنگل کې به وي. بل ځای مو گومان نه کېږي. چا به ویل پلاني ځنگل کې یوه لویه ونه ده چې څوکه یې چا ته نه ښکارېږي او بېخ یې هم نه معلومېږي او مېوه یې هم چا له په لاس نه ورځي. که چېرې هغه وي نو شک نشته. هر چا به ورپورې مسخرې کولې. دی غریب به په ځنگلونو، غرونو، مېرو او دښتو کې گرځېده. په پای کې تر ډېرو پوښتنو، گروېږونو نهیلی راستون شو. ډېر خپه او پاچا ته د عذر د وړاندې کولو فکر یې کاوه.

په یو ځای کې یې شپه شوه. هلته یې د یو سړي له خولې و اورېدل چې زموږ په دې کلي کې لوی عالم او ډېر ښه سړی دی. نوموړي په زړه کې و ویل، ور به شم که څه دعا راته وکړي. سمدلاسه پاڅېد، هغه عالم ته ورغی، ورته ویې ویل: "صاحبه، دعا را ته وکړه چې ایمان مې خدایﷻ سلامت کړي او په خېر سره وطن ته ورسېږم." هغه دعا ورته وکړه او بیا یې ترې پوښتنه وکړه: "چېرته تللی وې؟" قاصد ورته ټوله کیسه وکړه. عالم له اورېدو وروسته ورته و ویل: ((تاسو د هغه خپل پاچا په خبره نه یاست پوه شوي. هغه ونه د علم ونه ده. یعنې څوک چې د علم مېوه وخوري، نو تل ژوندی وي. د تلپاتې ژوند معنا دا ده چې خدایﷻ وپېژني. نېکي بدي ورته معلومه شي، نېک عمل

وکړي او له بدی نه ځان وساتي. کتابونه ولیکي، زده کوونکي وروزي. که دا سړی مړ هم شي هېڅ غم يې نشته؛ ځکه هلته يې روح ژوندی او دلته يې نوم ژوندی وي او ثواب يې داسې کېږي، لکه يو ژوندی سړی چې نېکي کوي او ثواب يې کېږي.)) سړي ورته وویل: ((صاحبه موږ هم دومره پوهېږو. نادانان نه یو. که چېرې هغه د علم نوم یاد کړي وای، موږ به پوه شوي وو چې هدف يې علم دی. هغه د ټولو خلکو په وړاندې ونه یاده کړه. په دې خو هر څوک پوهېږي چې علم د يو څيز نوم دی او ونه د بل څيز.)) هغه عالم وویل: ته بیا پوه نه شوې. مثال به درته ووایم. یو سړی وي، د چا پلار وي او د چا زوی، د چا لسمی وي او د چا نیکه، د چا خورې وي او د چا ماما، د چا تره وي او د چا وراره، د چا تروروزی وي او د چا تربور، د چا ورور وي او د چا اشنا، د چا دښمن وي او د چا دوست. ته گوره همدغه يو سړی دی او له دې نومونو څخه هر نوم چې په خپل ځای کې ورته څوک وايي، ویلی شي. سړي وویل: ښېشکه. هغه عالم وویل داسې علم ته هم دواړه نومونه ویلای شي، که دې خوښه وي نو ورته علم وایه او که نه د ژوندانه ونه ورته وایه. دواړه نومونه يو شی دي، هېڅ توپير پکې نشته.

سړي چې دا خبرې واورېدې د زړه تسلي يې وشوه. له عالم نه يې رخصت واخیست او د خپل کور په لور روان شو. ښار ته له رسېدو وروسته د پاچا دربار ته ورغی. پاچا ترې پوښتنه وکړه، ووایه مېوه دې وموندله او که نه؟

سړي ورته له سره کیسه شروع کړه. خپل ربړېدل او په ملکونو او په غرونو او په بیابانونو گرځېدل او د خلکو مسخرې يې ورته ټولې بیان کړې. پاچا ډېر خفه شو. ویې ویل ستا خواري بې گټې شوه او زما مطلب پوره نشو. سړي ورته د هغه عالم خبره پوره واوروله. پاچا د هغې په اورېدو ډېر خوشحال شو. سړي ته يې د هغه د ستونزمن سفر په وړاندې دوه برابره دولت ورکړ. پاچا خپل پاتې عمر د علم او د عالمانو په ساتنه او په پالنه کې تېر کړ.

ویې ویل: ((واړه او لویان ټول دې زده کړه وکړي او علم دې حاصل کړي.))

د متن لنډیز

پورته کیسه د علم او د پوهې د ارزښت په اړه ده. په کیسه کې له یادې ونې څخه موخه علم او پوهه ده.

علم نه زړېږي او تل تر تله وي. که یو عالم له ژوندہ سترګې پټې کړي، بیا هم د خپل علم له امله یادېږي، نوم او یاد یې د خلکو په ذهنونو او ژبو کې ګرځي. دغسې عالمان او پوهان د خپل علم له برکته تر پېړیو، پېړیو پورې ژوندي وي.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې د کیسې متن په پټه خوله ولولي او مفهوم ته دې ځیر شي.

۲ـ درې تنه زده کوونکي دې په وار سره د کیسې لنډ مفهوم نورو ټولګیوالو ته ووایي.

۳ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، یوه ډله دې د بلې ډلې په وړاندې د کیسې ویلو سیالي وکړي.

۴ـ څو تنه زده کوونکي دې د کیسې لنډیز په خپلو خبرو کې د ټولګي په وړاندې بیان کړي.

۵ـ څلور جوړې زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، خپل ځان دې د پوښتنو په ترځ کې یو بل ته وروپېژني.

بېلګه:

- زه د یوولسم ټولګي زده کوونکی یم.
- د دې ټولګي ټول مضمونونه مې لوستي دي
- الجبر او مثلثاتو مضمونونه مې د ټولګي نه بهر په شخصي کورسونو کې هم تعقیب کړي دي.

- غوارم چې د دولسم ټولګي له فراغت نه وروسته د کانکور ازموینه ورکړم او طب پوهنځي ته بریالی شم.
- تاسو په کوم ټولګي کې زده کړه کوئ؟
- په شخصي کورسونو کې مو داخله کړې؟
- له ښوونځي څخه له فراغت وروسته څه تصمیم لرئ؟

۶ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

- پاچا سړی په څه شي پسې لېږلی و؟
- چېرته یې لېږلی و؟
- سړی ولې په ځنګلونو او بېدیاوو ګرځېده؟
- پاچا د سړي له خبرونه وروسته څه پرېکړه وکړه؟




زده کوونکي دې په کور کې د مور، پلار یا کوم بل مشر له خولې یوه کیسه په خپلو کتابچو کې ولیکي او د بلې ورځې د پښتو مضمون په ساعت کې دې په ټولګي کې و وایي.



زده کوونکي لاندې شعر ولولي او خوندترې واخلي:

## د وچکالۍ ګلان

دا ســوی ســتي وطــن، پرېږدئ چــې لــږ وخاندي
دغــه غیرتــي وطــن، پرېــږدئ چــې لــږ وخانــدي
دا د مــرګ او وینو ســین، دا د زړه چــاودون محل
دا زخمــي زخمــي وطن، پرېــږدئ چې لــږ وخاندي
مــه وژنئ د شــپو پــه تېــغ، رون د مســتقبل څراغ
ســتړی فریــادي وطــن، پرېــږدئ چې لــږ وخاندي
اوښــکې د پېغلوټــو مــې، چیغــې د مظلــوم یتیــم
زوی د مورنــي وطــن، پرېــږدئ چــې لــږ وخاندي
غاړه کې پرته شــمله، پرې چې هســکه هســکه شي
دا زمــوږ ننګي وطــن، پرېــږدئ چې لــږ وخاندي
دا د وچکالــۍ ګلان، نــور نــو اوبیــدل غــواړي
تــږی د ســپرلي وطــن پرېــږدئ چــې لــږ وخاندي
(اسحق ننګیال)



# کتاب او کتابتون

د ذهني ودې، پوهې او معلوماتو د ترلاسه کولو لپاره کتاب تر ټولو غوره او اغېزناکه وسیله ده. د کتابونو تر لاسه کولو او مطالعې لپاره بیا تر ټولو ښه ځای کتابتون دی. زموږ په هېواد کې چې عصري تکنالوژي (کمپیوټر او انټرنېټ) دود نه و، نو هر چا به د خپلو معلوماتو د زیاتولو لپاره کتابتونونو ته مخه کوله او د اړوندې موضوع په اړه به یې خپل معلومات بشپړول. په دې لوست کې د کتاب، کتابتون او مطالعې په اړه معلومات درکوو.

کتاب څنګه منځته راغی او چېرته ساتل کېږي؟

په لرغونو زمانو کې کتاب نه و. پلرونو به خپلو ماشومانو او اولادونو ته هغه کیسې کولې چې په یاد به یې وې. کله به چې دا ماشومان لوی او پلرونه شول هغوی به بیا خپلو ماشومانو ته دا کیسې کولې، په پایله کې به دا کیسې له یوه نسل څخه بل ته پاتې کېدې.

څرنګه چې دا کیسې ډېرې زیاتې وې، نو په یاد پاتې کېدل یې د انسانانو لپاره ناممکن و او ځینې به هېرېدلې هم.

انسانانو یو څه ته اړتیا درلوده، چې د دې کیسو په ساتلو کې ورسره مرسته وکړي. ځینو خلکو به کیسې په یوه لرګي باندې د یوې علامې په توګه نښاني کولې او ځینو به په تارونو باندې رنګه رنګه غوټې جوړولې چې د یوې ځانګړې کیسې نمایندګي به یې کوله.

کله چې لیکل او لوستل را منځته شول، نو د کیسو ساتنه خلکو ته اسانه شوه. په هغه وخت کې کومه اله چې د هغې په واسطه به یې یو شی لیکه، یو ډول لرګی و چې تېره څوکه یې درلوده او د هغه په وسیله به یې په یوه نرمه خټه باندې نښه او یا رسم کاوه او بیا به یې دا خټه په داش کې پخوله چې تر ډېره پاتې شي، دا د کتاب په شکل نه، بلکې د یوې خښتې شکل یې درلود او دا کار په حقیقت کې د کتاب د منځته راتلو پیل وه.

ځینو خلکو به خپلې کیسې د ونو پر پوستکو او یا پاڼو باندې لیکلې، خو دا دوامداره نه وې. کله چې به وچې شوې ماتېدې به، خو د پاپیروس د ونې پوستکي نسبتاً زیات دوام درلود.

تقریباً پنځه زره کاله پخوا د مصر خلکو د پاپیروس له ونې څخه یو ډول کاغذ جوړاوه او تر هغې وروسته بیا د حېواناتو پر پوستکو باندې لیکل پیل شول. ځینې نورو تصویرونه هم ورباندې زیات کړل. په همدې ډول زره وړونکي کتابونه یې ترې جوړکړل. ځینو خلکو چې کیسې به یې لوستلای نه شوې د کتاب د تصویر له لیدلو څخه به ډېر خوشحالېدل. په هغه وخت کې کتابونه ډېر لږ وو او یوازې شتمنو خلکو کتابونه اخیستلای شول او بس. کله چې د چاپ ماشین په جرمني او کاغذ په چین کې جوړ شو، د کتاب جوړولو کار ډېر اسانه شو. نن د کتابونو د چاپېدو د زیات پر مختګ له کبله په میلونونو انسانان له کتاب څخه ګټه اخلي. کتاب د انسان لپاره ډېر ښه دوست او ملګری دی. له کتاب سره ملتیا او ملګرتیا موږ د عادي وګړو

له چاپېریال څخه د ډېرو لوړو افکارو او تصوراتو نړۍ ته بیا یي. له لوړو او سترو انسانانو سره مو ملګري کوي او د هغوی له فکر او نظر څخه مو خبروي.

کتاب د یوې هنداري په څېر دی. ښه او بد پکې بې له تېروتنې پخپل رنګ برېښي. زموږ کړه وړه، تولنیزې اړیکې، تدبیر او برخه لیک راته بیانوي. د هغوی سربښندنې، علمي او ادبي غورځنګونه، بېلا بېلې موندنې، موجودې ستونزې او هلې ځلې زموږ د سترګو په وړاندې انځوروي چې موږ یې د خپل ژوند سر مشق وګرځوو او د عبرت درس ترینه واخلو. هغه ځای چې کتابونه پکې د مطالعې لپاره په ترتیب سره ایښودل شوي وي، کتابتون نومېږي. په کتابتون کې د هر مسلک اړوند کتابونه په جلا جلا الماریو کې ځای پر ځای شوي وي.

کله چې موږ کتابتون ته ننوځو، هلته په ښکاره یو څو الماری وینو چې کتابونه او پاڼې پکې ځای پر ځای شوي دي. نوره چوپه چوپتیا خپره وي او هېڅ غږ پکې نه اورېدل کېږي. کله چې کتاب را واخلئ او پاڼې یې واړوئ، هماغه غلی کتاب په خبرو پیل کوي. په حیرانونکې چټکتیا سره مو ترې لرې لرې واټن پورې بیایي.

((پترارک)) یو نومیالی ایټالوي پوه د خپلو کتابونو او کتابتون په ستاینه کې وایي:

((زه یوه ډله ملګري او دوستان لرم، چې شپې او ورځې له هغوی سره تېروم. زما ټول دوستان د نړۍ نومیالي دي چې پېړۍ او زمان پکې خوندي دی. دغو دوستانو ډېر لرې واټنونه وهلي او زما تر کوره رارسېدلي دي. دوی زما په زړه او سترګو کې ځای نیولی دی. هر وخت چې وغواړم، د هغو لیدو ته ورځم او چې هر چېرې ځم له ځانه سره یې بیایم. دومره خوږ ژبي دي چې څوک یې په خبرونه مړېږي. د ژوند پټ رازونه راته څرګندوي، د تېرې زمانې د پند او خوندکیسې راته کوي او د انسانانو برخلیکونه راښیي. په دې مې پوهوي چې څرنګه ژوند وکړم. چې خواشینی شم په خوږو او مالګینو خبرو مې د غم اور وژني او خوښوي مې. د نېکمرغۍ لارې راښیي او هغو ته د رسېدو لپاره خپلې غوره لارښوونې له ما څخه نه سپموي. دا چې زما دا ملګري او دوستان ماته څومره ګټې رارسوي، زما ژبه یې د ستایلو او شمېرلو وس او توان نه لري.))

د کتاب، مطالعې او کتابتون له دې دومره ښېګڼو او ګټو سره سره باید دې ته مو پام وي

چې د کتابونو په مطالعه او ستاینه کې له ډېر غور او احتیاط څخه کار واخلو، کله چې غواړو د مطالعې په وسیله خپله معلوماتي پانګه زیاته او ذهني ځواک پیاوړی کړو، لومړی باید د لوستلو لپاره غوره، ګټور او باوري کتابونه وټاکو. په دویم ګام کې باید د مطالعې او لوستلو پرمهال خپل جسمي ځواک ته هم پوره پاملرنه وکړو، هسې نه چې په دې برخه کې په افراطي کړنې سره خپل جسم او ذهن له اندازې زیات ستړی او زیانمن کړو.

د متن لنډيز:

په تېرو زمانو کې چې کتاب نه و، لویانو به خپلو ماشومانو ته هغه کیسې کولې چې په یاد به یې وې.

د کیسو زیاتوالی او په یاد کې د هغو ساتل انسانان دې ته اړباسي، داسې وسیلې لاسته راوړي، چې یاد شوي شیان، پېښې او کیسې د هغې په واسطه ثبت او له هېرېدلو څخه وژغورې. په پایله کې د کاغذ اختراع، د چاپ ماشین او کتاب منځ ته راغی. اوس مهال کتابونه او کتابتونونه ډېر دي، خلک په اسانۍ سره کولای شي چې لاس ته یې راوړي او ترې استفاده وکړي. کتاب د هر چا لپاره تر هر څه غوره ملګری دی، هر وخت د استفادې او خدمت لپاره چمتو دی. کتاب او مطالعه ډېرې ګټې لري. باید د مطالعې لپاره غوره او ګټور کتابونه انتخاب کړو.

## فعالیتونه

۱ـ دوه تنه زده کوونکي دې په وار سره متن په لوړ اواز ولولي نور دې غوږ ونیسي د لوست مفهوم او د کلمو سم تلفظ ته دې ځیر شي.

۲ـ دوه دوه تنه زده کوونکي دې د لوستل شوي متن اساسي مفهوم په لنډ ډول بیان کړي.

۳ـ درې تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د کتاب او کتابتون د ارزښت په اړه دې خبرې وکړي.

۴ـ زده کوونکي دې په درې ډلو وویشل شي، هره ډله دې د کتاب او کتابتون د ارزښت په اړه خپل نظریات ولیکي، بیا دې د ډلې استازی د خپلې ډلې نظریات د ټولګي په وړاندې و وايي.

۵ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه و وايي:

- د چاپ ماشین لومړی په کوم هېواد کې جوړ شو ؟
- کاغذ څنګه او چېرته جوړ شو ؟
- کله چې کتاب نه و، خلکو به کیسې نورو ته څنګه انتقالولې ؟
- څنګه کولای شو خپله پوهه او معلومات زیات کړو
- کتابتون ته څه اړتیا لرو ؟
- د کتابونو د خوندي ساتلو لپاره کومې لارې چارې غوره ګڼئ؟

۶ـ څلورتنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي په وړاندې د لوست لنډ مفهوم و وايي.




زده کوونکي دې د کتاب د ارزښت په اړه یوه لنډه مقاله ولیکي او خپلې نظریې او تجربې دې پکې بیان کړي.



نېکمرغه هغه څوک دی چې له دوو شیانو څخه یو ولري:
یا ښه او غوره کتابونه یا داسې دوستان او ملګري چې کتابونه لري.
(ویکتور هوګو)

لاندې کیسه ولولئ او ځانونه پرې پوه کړئ:

یو سړی له قاضي سره نوکر و. په ډېر اخلاص او ایمانداری یې د قاضي خدمت کاوه. قاضي هم ترې خوښ و او هر ډول مرسته به یې ورسره کوله.

یوه ورځ نوکر د قاضي د ځمکې په اړولو بوخت و. په ځمکه کې یې له سرو زرو یوه ډکه کټوه وموندله او قاضي ته یې راوړه. ورته ویې ویل: قاضي صاحبه! دا د سرو زرو کټوه مې ستا په پټي کې وموندله. قاضي ډېر زیات خوشحاله شو او مزدوري یې ورزیاته کړه. هر وخت یې مرستې ورسره کولې.

څه موده ورسته هغه سړي د قاضي مزدوري پرېښوده او بېکاره شو. له یوه او بل سره به گرځېده. د خدای ﷻ کړه وو، له غلو او بدکارو سره ملگری شو. یوه ورځ یې د یوې ښځې غوږوالۍ پټې کړې. خلکو هغه ونیو او د غلا په تور یې محمکې ته راوست. په محکمه کې همغه قاضي ناست و چې دی ورسره څه موده د مخه نوکر و. غل یې قاضي ته وړاندې کړ.

قاضي چې مزدور ولید، نو ډېر خپه شو. له ځان سره یې وویل دا خو ډېر نیك سړی و. د یو بل چا په تور به یې دلته راوستی وي. که هغه غلا کولای، نو هغه زما په ځمکه کې موندلي سره زر به یې پټ کړي وو.

قاضي ترې پوښتنه وکړه چې درواغ او رښتیا څرگند شي. هغه هم ورته رښتیا وویل او خپل جرم یې ومانه. قاضي ورته وویل: ((زما په ځمکه کې دې ددې غوږوالیو سل هومره سره زر وموندل، خو بې خیانته دې راکړل. اوس دې دا ناڅیزه غوږوالۍ پټې کړې دي. ولې؟))

مزدور ورته وویل: ((لومړی مې له ښو خلکو سره ناسته او ولاړه وه. په غلا نه پوهېدم او نه مې بدکارونه کول. اوس له وزگارو او بدکارانو سره مل یم، ځکه په غلا او بدو کارونو روږدی شوم.))

له پورته کیسې څخه مو دا نتیجه واخیسته چې هیڅ وخت باید له بدکارانو او وزگارو خلکو سره ناسته پاسته ونه کړو. که کله له هغوی سره ناستې ته اړ شو، باید د هغوی له بدو کارونو څخه پند او عبرت واخلو.

له بدانو سره مه کښېنه هوښیاره
بدان تا باسي له ژونده له روزگاره
څو دې توان وي له بدانو لېرې گرځه
چې بد گرځې، بد په پرځې بد کرداره





# بشري حقونه



انسانان په ټولنه کې يو لړ حقونه لري. البته ځينې دا حقونه د بشر له خلقت راهيسې تل موجود وو او طبيعي حقونه بلل کېږي، خو د ژوند په بهير کې بشر نور حقونه هم تر لاسه کړل، چې دا د دوی ځانګړي حقونه دي. دغه راز انسانان په ټولنه کې د نورو حقونو په وړاندې مکلفيتونه هم لري چې هغوته بايد درناوي وکړي. نن سبا ټولې پر مختللې ټولنې او هېوادونه زيار باسي چې بشري حقونه خوندي او په هېڅ ډول ورخخه څوک بې برخې نشي. په دې لوست کې په ټولنه کې د بشري حقونو په هکله خبرې کوو او لولو چې انسانان په ټولنه کې کوم حقونه لري.

ـ بشري حقونه څه شی دي او د نورو حق ته بايد څرنګه درناوی ولرئ؟

بشري حقونه يو بنسټ لري او هغه انسانيت دی، له دې امله په ټوله نړۍ کې يو شان دي. د بشري حقونو زړی او هسته د اسلام د سپېڅلي دين له راتګ سره سم وکرل شوه. هغه انساني حقونه چې په اسلام کې بشرته ورکړل شوي، په بل کوم سازمان او ټولنه کې ځای نه لري، په دې توګه اسلام د بشري حقونو تر ټولو لومړنۍ سرچينه ده. الله ﷻ چې په دې نړۍ کې انسان پيدا کړی، له هماغه پيله يې پرې د زيات شمېر بشري حقونو لوريينه هم کړې ده. د بشري حقونو شمېره ډېره زياته ده، لکه: د ژوند کولو حق، د ملکيت لرلو حق، د زده کړې حق، د روغتيا حق، د تابعيت حق، د فکر او بيان د څرګندولو حق، د انساني کرامت او شخصيت د خونديتوب حق ... .

د ټولنيز ژوند په بهير کې ځينې وخت د زور واکوله خوا د کمزورو حقونه په زور زياتي تر پښو لاندې او له هغو څخه بې برخې کېږي. که وګورو دوی د خپلو حقونو د تر لاسه کولو لپاره هلې ځلې کړي چې ډېر اوږد تاريخ او لرغوني مخينه لري، بېلګې يې په بشري تاريخ کې خوندي دي.

د اسلام د سپېڅلي دين په راتګ سره د بشر حقونو ته پوره درناوی وشو او په بېلا بېلو بڼو موجود ټول توپيرونه يې له منځه يوړل. په الهي احکامو او نبوي ارشاداتو کې د دغو بشري حقونو د تثبيت په هکله ډېرې زياتې لارښوونې شته. د بېلګې په توګه کله چې حضرت ابوذرغفاري رضي الله عنه حضرت بلال رضي الله عنه ته وويل: ای حبشي غلامه! حضرت محمد ﷺ ورته وفرمايل: تور حبشي او سيد قريشي دواړه برابر او د خدای ﷻ بندګان دي. ويلای شو چې ټول انسانان برابر حقونه لري او په ځانګړې او ټولنيز ژوند کې بايد له هغو څخه برخمن شي. د بشري تاريخ په اوږدو کې، د نړۍ په ګوټ ګوټ کې وګړو د خپلو بشري حقونو د ترلاسه کولو لپاره ځانګړې او ډله ييزې هلې ځلې کړي او غړونه يې پورته کړي دي، خو په نړيواله کچه داسې کومه اداره نه وه چې له هغوی څخه سلب شوو حقونو ملاتړ وکړي.

دويمې نړيوالې جګړې په نړيواله کچه د بشري حقونو د دفاع لپاره د يوې لايحې او قانون د جوړولو اړتيا رامنځته کړه. په دې لړ کې په (۱۹۴۷) ميلادي کال د ملګرو

ملتونو د عمومي ټولنې له خوا د بشر د حقونو نړیواله اعلامیه تصویب شوه. دا اعلامیه یوه سریزه او (۳۰) مادې لري. د بشر د حقونو د نړیوالې اعلامیې له مخې انسان تر هر څه لومړی د ژوندکولو ازادي او د شخصي امنیت لرلو حق لري. همدارنګه هېڅوک باید شکنجه یا ونه ځورول شي. هر څوک حق لري چې حقوقي شخصیت یې په رسمیت وپېژندل شي. ټول د قانون په وړاندې برابر دي. هېڅوک دې په خپل سربندي یا له خپل ټاټوبي تبعید نه کړای شي. د چا په شرافت او ابرو دې تېری نه کېږي. هر څوک حق لري چې ازاد فکر وکړي، خپل فکر او نظر په ازادانه ډول څرګندکړي. د بیان ازادي چې د بشر د حقوقو د نړیوالې اعلامیې په نولسمه ماده کې راغلې، د بشر د ډېرو مهمو او بنسټیزو حقونو څخه ګڼل شوې ده. په دې برخه کې یادونه شوې ده چې هر څوک د بیان ازادي لري، خو د بیان آزادي هم خپلې پولې او حدونه لري. تر هغه چې پکې بشري کرامت ته سپکاوی نه وي او د هغه په وسیله د چا بشري حقوق تر پښنو لاندې نشي، د چاله دیني او مذهبي عقیدو، قومي، نژادي او توکمیز حیثیت او له خپلو ملي هېوادنیو ګټو سره په ټکر کې نه وي، د بیان ازادي جایزه ده. هر څوک حق لري چې زده کړه وکړي. زده کړې به اجباري وي، فني او حرفوي زده کړې به د ټولو په واک کې وي. د زده کړې موخه به د انساني شخصیت وده، د بشرحقونو ته درناوی او بنسټیزه ازادي وي. مور او پلار به د خپل ماشوم په اړه د زده کړې د ډول په ټاکنه کې لومړیتوب ولري. دولت مکلف دی چې د وګړو لپاره بې له کوم توپیره د زده کړې لارې چارې برابرې کړي، تر څو د خلکو د ذهني روزنې شرایط برابر شي. د بشر د حقونو په نړیواله اعلامیه کې د داسې نورو ډېرو حقونو یادونه هم شوې ده چې هغه ټول د انسان طبیعي او ټولنیز حقونه ګڼل کېږي. په نړیواله کچه ټول هغه هېوادونه چې د بشر د حقوقو اعلامیه یې لاسلیک کړې ده او په ملي کچه دغه دولتونه مکلف ګڼل کېږي چې د هغو رعایت وکړي. د ملګرو ملتونو د بشري حقونو اداره او د بشر د حقونو بېلا بېلې نړیوالې ټولنې په نړۍ کې د بشري حقونو حالت ته پاملرنه کوي او هغه څاري.

د متن لنډیز:

هر انسان ښځه وي او که نارینه، په ټولنه کې د ژوندکولو، د فکر او بیان د ازادۍ حق، د انساني کرامت او شخصیت د خوندیتوب حق لري. په اسلام کې هم د بشر د حقونو پوره درناوی شوی دی، هغه بشري حقونه چې په اسلام کې بشرته ورکړل شوي په بل کوم سازمان او ټولنه کې ځای نه لري. په نړیواله کچه هم د بشر د حقونو د ورکولو او درناوي په هکله ځانګړي قوانین رامنځته شوي او هېوادونه يې په رعایت کولو اړ او مکلف کړي دي. کله ناکله په یو ډول انسان له یوه یا زیاتو حقونو څخه بې برخې شي، نو د هغه بشري یا انساني دريځ ته زیان رسېږي. نن سبا ټولې پرمختللې ټولنې او هېوادونه زیار باسي چې انسان خپل حقونه ولري او په هېڅ ډول ورڅخه بې برخې نشي. کېدای شي په ځینو حالتونو، لکه د جګړې یا کورنۍ تاوتریخوالی او یا د یو جرم د سرته رسولو په حالت کې یو یا له یوه څخه زیات حقونه وځنډول شي، خو په هېڅ توګه ترې انسان د تل لپاره بې برخې کېدای نه شي اوس داسې سازمانونه او اداري شته چې په ټوله نړۍ کې د بشر د حقونو حالت څاري.

## فعالیتونه

۱ـ درې تنه زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي، د بشري حقونو په اړه دې خپل نظر ووایي.

۲ـ دوه تنه زده کوونکي دې د اسلام له نظره په بشري حقونو خبرې وکړي

۳ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ووايي او د متن اساسي مفهوم ته دې ځیر شي.

۴ـ زده کوونکي دې په درې ډلو ووېشل شي، هره ډله دې په ترتیب سره د بشري حقونو، د ښځو د حقونو او ماشومانو د حقونو په اړه خپل معلومات ولیکي او په پای کې دې د هرې ډلې مشر لیکل شوی معلومات نوروته ووايي.

۵ـ زده کوونکي دې فکر وکړي، چې کوم بشري حقونه په یو ټاکلي حالت کې ځنډېږي، دوه تنه دې د نورو په وړاندې پرې رڼا واچوي

۶ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- تاسو له دې لوست څخه څه مفهوم ترلاسه کړ؟
- د اسلام دين انسان ته کوم حقونه ورکړي دي؟
- د بشر د حقونو په نړيواله اعلاميه کې د کومو بشري حقونو يادونه شوي ده؟
- دولتونه د بشري حقونو په هکله څه مسؤوليت لري؟
- د بيان ازادي بايد تر کومه حده پورې وي؟

۷ـ څو تنه زده کوونکي دې په لاندې موضوعاتو يوه يوه دقيقه خبرې وکړي:

په خپل هېواد کې بشري حقونو ته په کومه سترګه ګورئ؟ ايا په دې هکله په خپل هېواد کې کومو حدودو ته ځای ورکوئ؟




زده کوونکي دې د بشري حقونو د اړتيا او ارزښت په اړه يوه مقاله وليکي او د بلې ورځې پښتو مضمون ساعت کې دې نورو ته ووايي.



کله چې هوس پر عقل برياله شي، انسان کندې ته لوېږي.
((حضرت علي کرم الله وجههُ))

لاندې شعر ولولئ او خوند ترې واخلئ:

ستا د عشق له وینو ډک شول ځیګرونه
ستا په لاره کې بایلي زلمي سرونه
تاته راشمه زړګی زما فارغ شي
بیله تا مې اندېښنې د زړه مارونه
که هر څو مې د دنیا ملکونه ډېر شي
زما به هېر نشي دا ستا ښکلي باغونه
د ډهلي تخت هیرومه چې رایاد کړم
زما د ښکلي پښتونخوا د غرو سرونه
د رقیب د ژوند متاع به تار په تار کړم
چې په تورو پښتانه کاګو زارونه
د فرید او د حمید دور به بیا شي
چې زه و کاندم په هر لوري تاختونه
که تمامه دنیا یو خوا ته بل خوا یې
زما خوښ دي ستا خالي تش ډګرونه
احمدشاه به دغه ستا قدر هېرنه کا
که ونیسي د تمام جهان ملکونه
(لوی احمدشاه بابا)



# د مور دریځ



مور د کورنۍ بنسټ ایښودونکې او د ټولنې جوړوونکې ده. په ټولنه کې یې دریځ تر هر چا او هر څه لوړ دی. مور ده چې په خپله غېږ کې مېړني اولادونه، غیرتي ځوانان، عالمان پوهان او ادیبان روزي، همدوی دي چې ټولنه د ترقۍ او پرمختګ پر لور بیایي او کارنامې یې د ټول ملت لپاره تلپاتې ویاړ وي. مور تر ټولو مهربانه ده، مور تر ټولو زیاته مینه ناکه ده. مور روزونکې او احساس ورکوونکې ده. د اسلام د ستر لارښود حضرت محمدﷺ په وینا چې: ((جنت د مور تر پښو لاندې دی.)) په دې وینا سره یې اولادونه د مور او پلار درناوي ته رابللي دي.

په دې لوست کې به د مور د عاطفې، زړه سوي او مهربانۍ په اړه یوه کیسه ولولئ.

مور ولې د زیات درناوي وړ ده؟

زړه د مينې او عاطفې ځای دی، د مور په زړه کې د خپل اولاد په اړه دا مينه عاطفه او صله رحمي تر هر چا ډېره زياته ده او تل يې په اولاد باندې د نېکو لور يينه وي. مور ته بايد په درنه سترگه وکتل شي او درناوی يې وشي.

د مور د ستايلو او درناوي اصل ته په پښتو ادبياتو کې هم زياته پاملرنه شوې ده. زيات شمېر شاعرانو او ليکوالو په خپلو منظومو او منثورو اثارو کې د مور مقام ستايلی دی. په بېلا بېلو ادبي نثرونو، شعرونو، داستانونو، ناولونو او نورو ادبي ټوټو کې د مور مقام ته پاملرنه شوې او د مور مقام پکې ستايل شوی دی. ويلای شو چې د مور مقام په پښتو ادبياتو کې ځانگړی ځای لري او زموږ د ادبياتو يو مهم څپرکی جوړوي. په بېلا بېلو ليکنو کې د مور مقام، د مور مهرباني، شفقت او عاطفه د اولاد په روزنه کې د هغې کړاو او زيار انعکاس موندلی دی. د دغو ټولو ليکنو مقصد يو دی او هغه دا چې د مور د مقام او حقوقو پېژندل او د هغې درناوی کول. په ولسي ادب او په تېره بيا په شفاهي ادب کې هم د مور د مينې عاطفې او مهربانۍ په اړه ډېرې کيسې شته چې يوه نمونه يې دلته راوړو: وايي چې د يوې مور ماشوم بلې ښځې پټ کړ. د ماشوم مور که هر څومره له غلې ښځې څخه خپل ماشوم وغوښت، خو هغې ور نه کړ او ويې ويل چې دا زما زوی دی. د ماشوم مور په چيغو چيغو قاضي ته ولاړه او عرض يې وکړ چې يوې ښځې مې ماشوم پټ کړی او نه يې راکوي. قاضي غله ښځه راوغوښته، هر څومره پلټنې چې يې ترې وکړې ښځه قانع نه شوه، ويل يې چې دا زما خپل زوی دی، پر ما يې نا حقه دعوه کړې ده. قاضي تر لږ فکر وروسته وويل: ما يوازې پرېږدئ چې د پرېکړې په اړه فکر وکړم. دواړه ښځې د قاضي له کوټې نه ووتلې. ښه شېبه وروسته قاضي دواړه ښځې راوغوښتلې. هغوی ته يې خپله پرېکړه داسې اعلان کړه: وروسته له ډېر سوچ څخه زه دې نتيجې ته ورسېدم چې ماشوم بايد دوه ټوټې شي، يوه ټوټه د يوې مور او بله ټوټه د بلې مور. په دې پرېکړې به عدل او انصاف پر ځای شي. قاضي جلات راوغوښت، ويل راشه دا ماشوم دوه ټوټې کړه. کله چې جلات توره په لاس راغی د ماشوم اصلي مور غږ کړ:

"قاضي صاحب ماشوم مه دوه ټوټې کوئ، دا ماشوم زما نه دی، هغې ته يې ورکړئ."

قاضي پوه شو چې د ماشوم اصلي مور همدا ده، ځکه چې د خپل زوی مرگ يې نشو

زغملای او هغه بله چې د ماشوم اصلي مور نه وه، د قاضي پرېکړه یې ومنله. په دې توګه قاضي ماشوم خپلې اصلي مور ته وسپاره او هغې بلې غلې ښځې ته یې سزا وټاکله.

د متن لنډیز

د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمدﷺ فرمایلي دي چې: ((جنت د مور تر پښو لاندې دی.)) د مور مقام په ټولنه کې تر هر چا لوړ دی او درناوی یې په ټولو لازم دی. د مور د مقام او درناوي په اړه په پښتو لیکلي او ګړني ادب کې زیاتې منظومې او منثورې ټوټې شته. په دې کیسه کې د مور د مهربانۍ یوه داسې نمونه تاسو ولوسته چې مینه او مهرباني یې له بل چا سره نه شي پرتله کېدای.

مور د مینې، محبت او مهربانۍ یوه داسې چینه ده چې د هر ډول حالاتو د زغملو لپاره یې تانده ساتي.

## فعالیتونه

۱_ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي او مطلب ته دې ځیر شي.

۲_څو تنه زده کوونکي دې په وار سره لاندې لغات معنا او د تختې پر مخ دې په جملو کې وکاروي: پرېکړه، پټ کړ، و ټاکله، غله، ټوټې، لورېینه، کړاو.

۳_ زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره په پنسل ډک کړي:

د مور مقام په ټولنه کې..................... لوړ دی.

زړه د ............... او ................... ځای دی.

وايي چې د یوې مور ................... بلې ښځې ................... کړ.

مور د ................ بنسټ ایښودونکې او د ................ جوړونکې ده.

مور په خپله غېږکې ....................... او ....................... روزي.

۴_ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او په لاندې ډول دې پخپل منځ کې خبرې وکړي:

اجمل: الفته وروره سترې مه شې.

الفت: خیر یوسې، ژوندی اوسې اجمله وروره.

اجمل: تاسو چېرته تللي وئ؟

الفت: زه خو محکمې ته تللې وم.

اجمل: خیر خو و، د څه لپاره؟

الفت: زموږ د کلي د یوې مور ماشوم بلې ښځې غلا کړی و.

اجمل: ښه نو! بیا مو څه وکړل؟

الفت: د ماشوم مور قاضي صاحب ته عرض وکړ.

اجمل: قاضي صاحب د ماشوم د مور عرض واورېده؟

الفت: هو! غله ښځه یې را وغوښته او پوښتنې یې ترې وکړې.

اجمل: اخر څه پرېکړه وشوه؟

الفت: غلا شوی ماشوم یې خپلې اصلي مور ته تسلیم کړ.

۵_ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د کیسې مفهوم په لنډو خبرو کې نورو ټولګیوالو ته ووایي.

۶_ له دغې کیسې څخه تاسې څه زده کړل؟ خپل نظر خپلو ټولګیوالو ته څرګند کړئ.




زده کوونکي دې د مور د مهربانۍ په اړه کومه اورېدلې کیسه په څو کرښو کې ولیکي او بله ورځ دې په ټولګي کې ولولي.

((هغه لاس چې زانګو زنګوي، هغه جهان زنګوي))

# جومات او ښوونځی
## (خبرې اترې)



د ماشوم لومړنی چاپېریال د مور غېږ ده. د مور غېږ د ماشوم د روزنې او پالنې او له مهربانۍ څخه ډک لومړنی ښوونځی دی. کله چې ماشوم د ګرځېدو شي او په خبرو کولو پیل وکړي، نو بیا جومات او ښوونځي ته لاره پیدا کړي. جومات او ښوونځی په یو کلي یا اولس کې دوې بنسټیزې ستنې دي، چې د هر کلي شتمني، بری او یو والی د همدغو دوو ستنو په ټینګښت پورې تړلی دی. په جومات کې دیني فضا موجوده ده او ښوونځي کې د پوهې هوا چلېږي. یو یې دښمني او کینه پاکوي او بل یې ناپوهي له منځه وړي او مدنیت را منځته کوي.

ـ تاسې خپله لومړنۍ زده کړه له کوم ځایه پیل کړې ده؟

ـ ستاسو په اند رسمي زده کړه څه راز زده کړه ده؟

زموږ په ګران هېواد افغانستان کې د زده کړې بهیر په دوديز ډول له ډېر پخوا څخه پیل شوی او په بېلا بېلو لارو يې وده او پراختیا موندلې ده. پخوا به هلکانو او نجونو په جوماتونو کې ديني زده کړې کولې، د وخت دوديز کتابونه به يې لوستل چې ليکل او لوستل زده کړي. دې زده کړو ته غیر رسمي زده کړې ویل کېدې. د وخت په تېرېدو سره ددې زده کړو تر څنګ رسمي زده کړې پیل شوې. د زده کړې منظمې دورې لکه: لومړنې ښوونځي، منځني ښوونځي او نور را منځته شول. په دې ښوونځيو کې د ټولنې د اړتیاوو له مخې د ټاکلو هدفونو او موخو د تر لاسه کولو لپاره ټاکلي درسي کتابونه لوستل کېدل. کله چې به له دې ښوونځيو څخه څوک فارغ شول، نو په ښه ډول به په ليک او لوست پوهېدل او خپلې اړتیاوې به يې پوره کولې. د زده کړې دا لړۍ نوره هم پراخه شوه، لیسې، د ښوونکو د روزنې عالي مؤسسې، د لوړو زده کړو مؤسسې او ځانګړې پوهنځي را منځته شول. په ځينو برخو کې همدا اوس د ماسترۍ تر بريده د زده کړو بهير پخپله د هېواد په دننه کې تر سره کېږي. که ښه ځير شو او د زده کړې ځايونو ته پاملرنه وکړو نو په کلي يا اولس کې د جومات او ښوونځي دواړو فضاوې سره لازمې او ملزومې دي چې په نتیجه کې ټول کليوال له رښتینې پوهې، مدنیت او ورورولۍ څخه برخمن کېږي. څوک چې دغه نېک خدمت تر سره کوي هغه هم د کلي ښوونکی او د کلي امام دی.

په دې اړه به مرکه او خبرې اترې ولولو:

## د دوو نجونو (زرکه ـ ځانګه) تر منځ مرکه (خبرې اترې)

ځانګه: السلام علیکم زرکې خورې سترې مه شې!

زرکه: وعلیکم السلام ځانګې خورې ته سترې مه شې.

ځانګه: اجازه را کوې چې ستا څخه، ستا د زده کړو په اړه پوښتنه وکړم؟

زرکه: مهرباني وکړه، ولې نه. زه ستا په خدمت کې يم.

ځانګه: تاسو خپله لومړنۍ زده کړه چېرته پیل کړه؟

زرکه: که رښتیا درته ووایم، زما د زده کړې پيل له جومات نه شوی دی.

ځانګه: ولې، ستاسې په کلي کې ښوونځی نه و؟

زرکه: ښوونځی و، خو یوازې هلکان به ښوونځي ته تلل.
څانګه: تاسو په جومات کې له چا نه زده کړه کوله؟
زرکه: د جومات ملا صاحب به موږ ته په ورځ کې د سهار او ماسپښین له خوا سبق راکاوه.
څانګه: تاسو په جومات کې کوم کتابونه لوستل؟
زرکه: موږ په جومات کې یوازې دیني کتابونه لوستل.
څانګه: کله مو ښوونځي کې زده کړه پیل کړه؟
زرکه: زه اته کلنه وم چې د خپلې کورنۍ سره کابل ته راغلم او پلار مې د نجونو په لومړني ښوونځي کې شامله کړم.
څانګه: تاسو اوس مهال په څوم ټولګي کې یاست؟
زرکه: زه سږکال له دولسم ټولګي څخه فارغه شوم.
څانګه: د نورو لوړو زده کړو تصمیم لرې؟
زرکه: کانکور ازموینه مې ورکړې، هیله لرم چې ژورنالیزم پوهنځي ته بریالۍ شم.
څانګه: خدای دې وکړي، تاسو ته بریالیتوب غواړم.

## د دوو هلکانو (ایمل ـ اجمل) تر منځ خبرې اترې

ایمل: اجمل وروره تاسو چېرته اوسېږئ؟
اجمل: ایمل وروه، زه د خپلې کورنۍ سره یو ځای په خوست کې اوسېږم.
ایمل: په خوست کې د زده کړې بهیر څنګه دی؟
اجمل: په خوست کې له څوارلسو څخه زیاتې ولسوالۍ موجودې دي. په هره ولسوالۍ کې لومړني او منځني ښوونځي شته.
ایمل: اورېدلي مې دي، چې په کلو او بانډو کې خلک خپلې لونې په ښوونځیو کې نه شاملوي؟
اجمل: ایمل جانه! دا د ډېر پخوا وخت خبره ده، اوس داسې نه ده.
ایمل: ستاسو په سیمه کې دوديزې زده کړې اوس هم تر سره کېږي؟
اجمل: زموږ د زده کړو لومړنی ښوونځی خو جومات دی.

ایمل: دا په کوم لحاظ؟
اجمل: دا ځکه چې په جومات کې زموږ ماشومانو ته دیني زده کړه ورکول کېږي. دا زده کړه ډېره اړینه ده.
ایمل: عصري زده کړې خو هم اړینې دي؟
اجمل: ولې نه؟ د همدې اړتیا په اساس خو ښوونځي او د لوړو زده کړو مؤسسې را منځته شوي دي.
ایمل: ستاسو په ولسوالۍ کې نجونې او هلکان په یوه ښوونځي کې درس وایي او که سره بېل؟
اجمل: یوازې زموږ په ولسوالۍ کې نه، بلکې د افغانستان په ټولو سیموکې د نجونو لپاره جلا او د هلکانو لپاره جلا ښوونځي دي، آن تر دې چې ودانۍ یې هم سره جلا دي.
ایمل: تاسو اوس په څویم ټولګي کې یاست؟
اجمل: دوه کاله مخکې له غازي لېسې څخه فارغ شوی یم او اوس د خوست پوهنتون د طب پوهنځي د دویم کال محصل یم.

## دریمه مرکه

شریف: ظریف جانه! السلام علیکم، څنګه یې؟
ظریف: وعلیکم السلام شریفه وروره، د الله ﷻ مهرباني ده، ښه یم.
شریف: په دې کڅوړه کې دې څه را اخیستي دي؟
ظریف: په دې یوه کڅوړه کې د ښوونځي کتابونه دي او په دا بله کې د جومات.
شریف: اوس ښوونځي ته ځې او که د کلي جومات ته؟
ظریف: په جومات کې مې د ملا صاحب نه سبق وویلو، اوس غواړم چې ښوونځي ته ولاړ شم.
شریف: د ښوونځي او جومات کتابونه هم مهال زده کولای شې؟
ظریف: هغه کوم چې د سهار له خوا په جومات کې دیني سبق ووایم او له غرمې نه وروسته ښوونځي ته لاړ شم.

شریف: د جومات له ملا نه دې کوم کتابونه شروع کړي دي؟
ظریف: قرآنکریم مې له ترجمې سره پیل کړی دی.
شریف: د ښوونځي په څوم ټولګي کې یې او کوم کتابونه وایې؟
ظریف: په نهم ټولګي کې یم، تاریخ، جغرافیه، ریاضي، ساینس، او نور مختلف مضامین را ته تدریس کېږي.
شریف: کوم کتابونه چې دې په جومات کې لوستي دي، د ښوونځي له کتابونو سره مرستندوی کېدای شي؟
ظریف: که رښتیا و وایم زما د برې لامل په جومات کې لوستي کتابونه دي.
شریف: دا څنګه کېدای شي؟
ظریف: دا ځکه چې د ترجمې په ترڅ کې مې ډېر لغات ذېرمه کړي.
شریف: تا دې خدایﷻ په خپلو زده کړو کې بریالی لري.

د متن لنډیز

زموږ په هېواد افغانستان کې د زده کړې بهیر له ډېر پخوا څخه پیل شوی دی.

پخوا به وړو نجونو او هلکانو د خپل کلي په جوماتونو کې د جومات د امام یا ملا څخه زده کړه کوله، الفبې سیپاره، الف لام، قرآنکریم، خلاصه، پنج کتاب او نور دوديز کتابونه یې لوستل، دغې زده کړو ته یې غیر رسمي زده کړې ویلې.

کله چې ښوونځي تاسیس شول، د غیر رسمي زده کړو تر څنګ رسمي زده کړې هم پیل شوې، د زده کړې منظمې دورې، لکه: لومړني ښوونځي، منځني ښوونځي، ثانوي ښوونځي او نور را منځته شول. په دې ښوونځیو کې د ټولنې د اړتیاوو له مخې د ټاکلو موخو د تر لاسه کولو لپاره د تعلیمي نصاب سره سم درسي کتابونه لوستل کېدل. دا لړۍ اوس د لوړو زده کړو تر بریده غځېدلې ده. د ښوونکو د روزنې مؤسسې، پوهنځي د ماسترۍ تر بریده زده کړې خپله د هېواد په داخل کې تر سره کېږي. ښایي تر دې لا هم د لوړو زده کړو زمینه پخپله د هېواد په دننه کې برابره شي.



## فعالیتونه

۱ــ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. د یوې ډلې یو تن غړی دې له بلې ډلې څخه لاندې پوښتنې وکړي او د هغې ډلې یو تن غړی دې په وار سره ځواب ووایي:

- د ماشوم لپاره د زده کړې لومړنی چاپېریال کوم دی؟
- دودیزې زده کړې کومو زده کړو ته وایي؟
- رسمي زده کړې کومې دي؟
- ستاسې په سیمه کې د نجونو لپاره جلا ښوونځي شته؟
- لوړې زده کړې له کوم ټولګي څخه پیلېږي؟
- لوړو زده کړو ته د شمول آزموینه په کوم نوم سره یادېږي؟

۲ــ یو یو زده کوونکی دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د خپلو زده کړو د پیل په اړه دې دوه دقیقې خبرې وکړي.

۳ــ څو زده کوونکي دې په وار سره لاندې لغات په جملو کې وکاروي:

چاپېریال، پیل، بنسټیزې، ټینګښت، وده، دودیز، موخو، اړتیاوې، بریده، لړی.

۴ــ څلور تنه زده کوونکي دې په وار سره د لاندې جملې اصلي مفهوم ووایي:

((په جوماتونو او ښوونځي کې د دین او پوهې هوا چلېږي.))



## کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې د خپلې خصوصي او رسمي زده کړو په اړه لس کرښې مطلب ولیکي او د بلې ورځې د پښتو مضمون په درسي ساعت کې دې نورو ټولګیوالو ته واوروي.

د علم او پوهې هر ښوونځی چې پرانستل کېږي، د زندان دروازه تړل کېږي.
(ویکتور هوګو)





# پښتو قاموسونه

قاموس د يوې ژبې د لغاتو زېرمه ده. د هغه ژبې د لغاتو ټوله شتمني پکې را ټوله شوې وي.

د قاموس ليکنه او د لغاتو راټولول او سپړل يو ارزښمن او د قدر وړ کار دی، دا کار پر پښتو سربېره د نړۍ په ټولو ژونديو ژبو کې ترسره شوی دی.

خپلې ژبې ته خدمت کول په حقيقت کې خپل علمي، کلتوري او ټولې فرهنگي شتمنۍ ته خدمت کول دي.

په دې لوست کې به پښتو قاموسونه دروپېژنو.

قاموس ليکل او له قاموس سره بلدتيا څه گټه لري؟

په ژبه کې د وخت په تېرېدو سره یو شمېر لغات له کاروني څخه لوېږي، ځای یې نورې کلمې نیسي یا یوازې په یوې لهجې محدودېږي او یا د ځینو کلمو معنا او مفهوم بدلېږي.

د یوې ژبې د لغوي پانګې د خوندي کېدو او له نورو ژبو څخه راغلو کلمو د تنظیم په موخه قاموس لیکل کېږي.

سربېره پر دې که د یوې ژبې ویونکي غواړي دویمه ژبه زده کړي، نو په دې لړ کې تر ټولو لومړی قاموسونو ته اړتیا لري. ځکه د بلې ژبې په ستونزمنو لغاتو پوهېدل له قاموس پرته امکان نه لري.

که له یوې خوا د قاموس په مرسته د لغاتو بېلا بېلې معناوې څرګندېږي او د دویمې ژبې د مشکلو لغاتو په حل کې کار ورکوي، نو له بلې خوا لغوي زېرمه هم له ورکېدو څخه ژغوري او راتلونکي نسل ته یې انتقالوي.

که په پښتو ژبه کې د قاموس لیکنې تاریخي بهیر ته پاملرنه وکړو، نو وینو چې دغه قاموس لیکنه له هېواده بهر پیل شوې ده؛ په دې معنا چې د لومړي ځل لپاره په بهرنیو هېوادونو کې پښتو قاموسونه یا د پښتو قاموسونو مقدمات برابرشول، چې دا کار په خپل وخت او خپل ځای کې ګټور و.

له دې وروسته زموږ په هېواد او کوزه پښتونخوا کې هم ځینې قاموسونه و لیکل شول، چې ((پښتوسیند)) د دې اثارو یو ارزښتناک او ګټور پیل ګڼل کېږي.

اوس به د ځینو هغو قاموسونو لنډه پېژندنه وکړو چې زموږ په هېواد کې لیکل شوي او چاپ شوي دي:

## ۱ـ ریاض المحبت:

د موندل شوو آثارو په لړ کې په پښتو ژبه کې لومړنی قاموس ګڼل کېږي. مؤلف یې نواب محبت خان د حافظ رحمت الله خان زوی دی، چې د احمدشاه بابا په وخت کې یې ژوند کاوه. دا کتاب په (۱۲۲۰) لمریز کال لیکل شوی دی.

### ۲ـ پښتو سیند:

پښتو دري قاموس دی؛ په (۱۳۱۶) لمریز کال د کابل په عمومي مطبعه کې چاپ شوی دی. مؤلف یې ارواښاد محمدګل مومند دی. دغه قاموس او وه زره لغتونه لري.

### ۳ـ پښتو مرکې:

د پښتو مرکې له خوا دوه قاموسونه لیکل شوي، چې یو یې: (پښتو دري قاموس او بل یې دري پښتو قاموس) دی. په پښتو دري قاموس کې یو ولس زره لغتونه ځای شوي دي. د کتاب مؤلف یې عبدالرحمن لودین دی؛ چې په ۱۳۰۲ لمریز کال کې د پښتو مرکې دویم مشر و.

### ۴ـ سپېڅلې پښتو:

د فارسي پښتو کوچنی قاموس دی؛ په ۱۹۴۰ میلادي کال کې چاپ شوی دی. دغه اتر لس زره لغتونه لري. د هر فارسي لغت لپاره څو پښتو لغتونه راوړل شوي دي. د کتاب لیکونکی ښاغلی حبیب او لعل محمد کارګر دي، دا قاموس په کندهار کې چاپ شوی دی.

### ۵ـ لس زره لغات:

پښتو ـ فارسي قاموس دی؛ چې لس زره لغتونه پکې ځای شوي دي. د کتاب لیکونکی یې اعظم ایازی دی او چاپ یې په (۱۳۲۰) لمریز کال ترسره شوی دی.

### ۶ـ پښتو اردو قاموس:

د دغه قاموس مؤلف سید راحت زاخیلی دی. په قاموس کې لس زره لغتونه را ټول شوي دي. د لغاتو اوډون یې د الفبا په ترتیب په اردو ژبې سره شوی دی. دا کتاب په پېښور کې چاپ شوی دی.

## ۷_ افغان قاموس:

پښتــو _ فارســي قاموس دی، په (۱۳۳۱هـ.ش.) کال په دوو ټوکو کې خپور شوی. دغه قاموس د محمدگل نوري دی او د پښتو ټولنې د لغاتو د څانگې د غړو له خوا راټول شوی او څلوېښت زره لغتونه لري.

۸_ د افغان قاموس ترسر لیک لاندې یو بل (دري _ پښتو) قاموس دی، چې په دریو ټوکونو کې د پښتو ټولنې له خوا چاپ او خپور شوی دی.

لومــړی ټوک یې په (۱۳۳۵هـ.ش.) کال لــه چاپه راوتلی. دا ټوک د (الف) په توري پیل او د (ج) په توري پای ته رســېږي، په دې قاموس کې لومړی فارســي کلمه او د هغې فارســي معنا او بیا یې د پښتو معنا او تشــریح لیکل شوې ده. لیکوال یې عبدالله افغاني نویس دی. د پښــتو ټولنې یو شــمېر پوهانو یې هم په کتنه او کره کولو کې برخه اخستې ده.

دویم ټوک یې د لومړي ټوک په تعقیب لیکل شــوی دی، د (ح) په توري پیل او په (غ) توري پای ته رسېږي. (۹۴۰) مخه دی، نور خصوصیات یې د لومړي ټوک په څېر دي.

د افغان قاموس دریم ټوک د نورو ټوکونو په شان دی.

د دې قاموس د درې واړو ټوکونو د لغاتو شــمېر د (۱۹۰۰۰) په شــاوخواکې اټکل کېدای شي.

## ۹_ پښتو قاموس:

دا قاموس په دوو ټوکونو کې د پښــتو ټولنې له خوا په دولتي مطبعه کې چاپ شوی دی. لومړی ټوک یې د (الف) په توري پیل او په (س) پای ته رســېږي. په قاموس کې هر لغت په دري ژبه معنا شوی او بیا په پښتو جملو کې استعمال او جمله هم په دري ترجمه شــوې ده. دویم ټوک یې د لومړي ټوک په تعقیب لیکل شــوی. چــاپ یې په (۱۳۳۲)

هجري کال کې سرته رسېدلی دی. دا ټوک د (ش) په توري پیل او په (ی) پای ته رسېږي. د دواړو ټوکونو د لغاتو شمېر (۴۰۰۰۰) په شاوخوا کې اټکل کېدای شي. د قاموس مؤلف یو تن نه دی، بلکې د پښتو ټولنې د لغاتو د څانګې له خوا په ګډه لیکل شوی دی.

## ۱۰ـ پښتو ـ دري لنډ قاموس او فرهنګ مختصر دري ـ پښتو:

دا دواړه قاموسونه د (۱۳۸۴) لمریز کال په ژمي کې هم مهاله له چاپه راوتلي. د چاپ چارې یې د آزادۍ په مطبعه کې تر سره شوي دي. پښتو دري لنډ قاموس په لیکلو کې د افغانستان د علومو د اکاډمۍ د پښتو ژبې او ادبیاتو دانستیټیوټ پوهانو اوڅېړونکو برخه اخیستې ده. د هر لغت تلفظ په فونیمیکه الفبې لیکل شوی. د خج ځایونه هم په ګوته شوي چې ویونکي ته د سم تلفظ په برخه کې لازمې اسانتیاوې برابروي. دغه قاموس د ښوونځیو زده کوونکو او هم د پښتو ژبې له بهرنیو مینه والو سره د پښتو ژبې په زده کړه کې پوره مرسته کولای شي. په دغه قاموس کې (۴۵۶۶) پښتو لغتونه په دري ژبه معنا شوي او هم یې ګرامري خصوصیات ښوول شوي دي.فرهنګ مختصر دري ـ پښتو، په لیکلو کې د دري ژبې او ادب انستیټیوټ غړو برخه اخستې ده. په دې قاموس کې هم هماغه لار تعقیب شوې. دري لغات یې لومړی په فونیمیکه بڼه لیکلي او بیا په پښتو معنا شوي دي.

## ۱۱ـ پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس:

د دې قاموس د لیکلو لومړنۍ چارې اصلاً د وخت د پښتو ټولنې د لغاتو د څانګې له خوا پیل شوې وې. په اوسنۍ بڼه د افغانستان د علومو اکاډمي له تاسیس نه وروسته، د ژبو او ادبیاتو د مرکز د ژبپوهنې څانګې دغه سلسله پسې تعقیب او تر (۱۳۶۵) لمریز کال پورې د دې قاموس څلور ټوکونه یو په بل پسې له چاپه راووېستل.

په پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس کې لومړی هر لغت په پښتو الفبې او بیا وروسته د

تلفظ د کره توب لپاره په فونیمیکه الفبې لیکل شوی دی. همدغسې د کلمو د فشار ځایونه هم ښودل شوی. د ځینو لغاتو لپاره مختلف لهجوي تلفظونه او مترادفات راغلي دي او بیا ځینې لغتونو په لنډو لنډو جملو کې شرحه شوي دي. دا قاموس په پنځو ټوکونو کې ترتیب شـــوی دی. د ټولو ټوکونو د لغتونو شـــمېر یې تقریباً پنځه پنځوس زروته رسېږي. د دې قامـــوس څلور ټوکونه چاپ او پنځم ټوک یې دځینو ســـتونزو له امله له چاپه پاتې شـــوی دی. پښتو ـ پښـــتو تشـــریحي قاموس په لیکلو کې له بېلا بېلو قاموسونو څخه استفاده شوې ده.

د متن لنډیز:

د قاموس لیکل په پښتو سربېره د نړۍ په ټولو ژوندیو ژبو کې تر سره شوي دي. قاموس د یوې ژبې د لغاتو زیرمه ده، تقریباً د هغه ژبې ټوله شتمني پکې را ټوله شوي وي. نو لیکل او ترتیبول یې یو ارزښمن او د قدر وړ کار دی.

قامـــوس لیکنه د یوې ژبې د لغوي پانگې د خونـــدي کېدو او له نورو ژبو څخه راغلو کلمو د تنظیم په موخه تر ســـره کېږي. په پښـــتو ژبه کې قاموس لیکنه لومړی له هېواده بهر پیل شـــوې ده، وروســـته په افغانســـتان اوکوزه پښـــتونخوا کې ځینې قاموسونه ولیکل شول.

(ریاض المحبت، پښتوسیند، پښتومرکې قاموس، سپېڅلې پښتو، لس زره لغات، پښـــتو اردو قاموس، افغان قاموس، پښتو قاموس، پښتو دري لنډ قاموس، فرهنگ مختصر دري ـ پښـــتو ـ پښتو تشریحي قاموس) په پښتو کې لیکل شوي قاموسونه دي چې د پښتو ژبې او لهجو لغوي پانگه پکې خوندي ده.



## فعالیتونه

۱ـ درې تنه زده کوونکي دې په وارسره د پښتو قاموسونو نومونه د ټولګي په وړاندې و وايي.

۲ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، د پښتو قاموسونو ارزښت دې بیان کړي.

درې تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د لاندې محاورې په څېر دې خبرې اترې وکړي:

| لومړی زده کوونکی | دویم زده کوونکی | دریم زده کوونکی |
|---|---|---|
| اجازه ده کتابتون ته راشم؟ | هو، راشه: | نه، مه راځه: |

اجازه ده چې کتاب له ځانه سره یوسم؟/ هو، کتاب له ځانه سره یوسه/نه، دکتاب وړلو اجازه نشته.

| | | |
|---|---|---|
| اجازه ده چې ټېلفون وکړم؟ | هو، په ټېلفون کې خبرې وکړه. | نه، مه يې کوه |
| اجازه ده چې کتاب وګورم؟ | هو، ویې ګوره: | نه، مه يې ګوره: |

۳ـ دوه تنه زده کوونکي دې وټاکل شي، يو تن دې لاندې کلمې په بېلګه يې جملو کې د مفرد په بڼه وکاروي او بل تن دې د جمع په ډول:

(قلم، کتابچه، کتاب، بکس، قاموس، لیکونکی)

| لومړی | دویم |
|---|---|
| ستا قلم چېرې دی؟ | ستا قلمونه چېرې دي؟ |
| ستا کتابچه کومه ده ؟ | ستا کتابچې کومې دي؟ |

| | |
|---|---|
| ستا کتا ب کوم دی ؟ | ستا کتا بونه کوم دي ؟ |
| ستا بکس چېرې دی ؟ | ستا بکسونه چېرې دي ؟ |
| تا پښتو قاموس کتلی دی ؟ | تا پښتو قاموسونه کتلي دي ؟ |
| د افغان قاموس لیکونکی څوک دی ؟ | د افغان قاموس لیکونکي څوک دي ؟ |

۴ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې لومړی خپل ځان نورو ټولګیوالو ته وروپېژني او بیا دې د پښتو قاموسونو په اړه خبرې وکړي.

۵ـ څو تنه زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- پښتو ـ دري لند قاموس په کومه مطبعه کې، کله چاپ شوی ؟
- افغان قاموس په څو ټوکونو کې تدوین شوی ؟
- د پښتو اردو قاموس مؤلف څه نومېږي ؟
- په سپېڅلي پښتو کې څو زره لغات راټول شوي دي ؟
- پښتو لومړنی قاموس په کوم نامه يادېږي ؟
- د دويمې ژبې په زده کړه کې قاموس څه رول لري ؟




زده کوونکي دې د قاموس د ارزښــت په اړه څو کرښــې وليکي او په بله ورځ دې د نورو په وړاندې ووايي.



# د ژبې د زده کړې اهمیت
## (خبرې اترې)



په ټولنه کې د وګړو تر منځ د پوهونې او راپوهونې او د بشري پوهنو د زده کړې بنسټيزه وسیله ژبه ده. انسانان د ژوند له هماغه لومړي پيل څخه د يو بل د پوهو لپاره ژبې ته اړ وو. هغوی اړ وو چې خپل فکر یو بل ته انتقال کړي او د بل په فکر باندې ځانونه وپوهوي، ژبه انسان ته د دې وړتيا ورکوي چې پوهه، مهارت، تجربې خوندي او په ليکنۍ يا ګړنۍ (شفاهي) توګه يې نورو ته ولېږدوي. له دې امله ژبه د خپل ارزښت له مخې د انسان په ژوندکې خورا مهم رول لري. ژبه ده چې انسان له نورو حیواناتو بېلوي، غږېدا او خبرې په ژبه کېږي او ژبه هغه وخت ښه زده کېږي چې خبرې پرې وشي، ځکه چې خبرې اترې د ژبې د زده کولو اسانه او ښه لاره ده که د يو چا هر څومره ژبې زده وي په هماغه اندازه ځواکمن دی.

که ژبه نه وای څه به پېښ شوي وای؟

ژبپوهان ژبه د يو لړ وييزو او اوريزو آوازونو مجموعه بولي چې د يوې ټولنې وګړي يې يوله بله د پوهولو لپاره پر ژبه راوړي او يو بل ته يې اوروي. په دې توګه ژبه د انسانانو تر منځ د پوهولو راپوهولو يوه وسيله ګرځي. د هغو کلمو او خبرو ټولګې ته ژبه ويل کېږي چې يو څوک يې بل چا ته د خپل فکر د بيان لپاره کاروي. وينا او خبرې کول د افکارو د څرګندولو ډېره ښه وسيله ده. ژبه يوه ټولنيزه پديده ده چې د هغې په وسيله د ټولنې تر منځ يو ډول اجتماعي مناسبات منځ ته راځي. ژبه د آوازونو د يو سيستما تيک نظام په توګه د ښودلو او زده کولو وړ ده، ځانته ټاکلي قواعد لري له ټولنې څخه زده کېږي، د ټولنې محصول ده او موجوديت يې له ټولنې څخه دباندې نشي تصور کېدای. ژبه د انساني ټولنې په چاپېريال کې د حقايقو د څرګندولو اود افکارو د تبادلې وسيله ده. يو مشهور متل دی چې وايي: ((خپله ژبه هم کلا (قلعه) ده هم بلا) يعنې که دې ښه وکاروله او ښې نرمې نېکې خبرې دې وکړې نو ستا لپاره امن ګرځي او که دې ترې ناوړه استفاده وکړه نو بيا ورته همدغه خپله ژبه بلا او اپت ګرځي.

د ژبې د سمې کارونې په اړه لاندې کېسه ولولئ او ترې پند واخلئ:

يو وخت يو پاچا خپل اشپز ته وويل، چې بېګاه ته ښه خوندور خواړه پاخه کړه. اشپز ښارته لاړ او د پسه ژبه يې رانيوله او پاچا ته يې پخه کړه. بېګا ته پاچا وخوړه او ډېره مزه يې ورکړه. بلې شپې ته پاچا خپل اشپز ته وويل چې بېګا ته خراب خواړه پاخه کړه. اشپز بيا د پسه ژبه پخه کړه. کله چې پاچا ډوډۍ وخوړه، له اشپز څخه يې وپوښتل: پرون مې درته وويل چې ښه خواړه پاخه کړه، نو تا راته ژبه پخه کړه او چې نن مې درته وويل: خراب خواړه پاخه کړه. بيا دې هم ژبه پخه کړه، د دې راز په څه کې وو؟ اشپز وويل: ((همدا ژبه ده، چې ښې خبرې پرې وکړې او په خوږو خبرو او ښه ډول يې استعمال کړې، نو ژبه خوږه ده او که په بدو خبرو يې استعمال کړې نو بده ده))

د متن لنډیز:

ژبه دانساني ټولنې په چاپېریال کې د حقایقو د ځرګندولو، د افکارو د تبادلې او د بشري پوهنو د زده کړې بنسټیزه وسیله ده. ژبه ده چې انسان پرې خپل فکر او نظر بیانوي، خپل مطلب او غوښتنې یو بل ته وایې او همداشان د نورو په غوښتنو پوهېږي.

پوهونه او پوهېدنه په بېلا بېلو طریقو سره سرته رسېږي. د دې لپاره چې په سمه او ښه توګه د دوو یا ډېرو کسانو ترمنځ مفاهمه صورت ونیسي نو د ژبې څخه باید په ښه ډول کار واخیستل شي او په داسې ډول ژبه وکاروي چې ټول ترې خوښ او خوشحاله وي. د ژبې بنسټیز ارزښت همدا دی، څه چې په زړه او ذهن کې وي په درست ډول بیان کړای شي.

## لومړۍ محاوره:

سپوږمۍ: پرښتې خورې ستړې مه شې.

پرښته: السلام علیکم، سپوږمۍ جانې! ته ستړې مه شې.

سپوږمۍ: چېرته روانه یې؟

پرښته: د ژبې د زده کړې مرکز ته ځم.

سپوږمۍ: خیر خو به وي!د ژبې د زده کړې په مرکز کې څه کوې؟

پرښته: هلته مې د پښتو ژبې د زده کړې کورس نیولی دی.

سپوږمۍ: ولې ته په پښتو ژبه نه پوهېږې؟

پرښته: په ژبه خو پوهېږم، مګر خبرې پرې نشم کولای.

سپوږمۍ: په ښوونځي کې تاسوته په کومه ژبه تدریس کېږي؟

پرښته: موږ ته تدریس په مورنۍ ژبه کېږي، پښتو مضمون هم وایو.

سپوږمۍ: بیا نو د پښتو ژبې د زده کړې اړتیا څه ده؟

پرښته: پښتو لکه د دري په څېر زموږ ژبه ده، باید په پښتو ژبه لیکل، خبرې کول اولوستل وکړای شم.

سپوږمۍ: پرښتې خورې، زموږ په ټولګي کې تدریس هم زموږ په مورنۍ ژبه (پښتو) دی،

خو دري مضمون هم وايو.

پرښته: سپوږمۍ خورې! ستا خو مورنۍ ژبه پښتو ده، په دري ژبه خبرې کولای شې؟

سپوږمۍ: په دري ژبه لیکل او لوستل مې زده دي او تر خپلې اندازې مشکل هم پرې حلولی شم.

پرښته: ته نېکمرغه یې، د چا، چې هر څومره زیاتې ژبې زده وي هماغومره ځواکمن وي.

سپوږمۍ:په رښتیا چې ژبه د اړتیا په اساس را منځته شوې او د اړتیا په صورت کې زده کېږي، خو ارزښت یې په دې کې دی، چې سړی پرې لیکل، لوستل او غږېدل وکړای شي.

## دویمه محاوره:

سېلاب: السلام علیکم، هارونه وروره ستړی مه شې، څنګه یې؟

هارون: وعلیکم السلام، سېلاب جانه، د خدای ﷻ فضل دی ښه یم.

سېلاب: ته اوس په څوم ټولګي کې یې او په کوم ښوونځي کې زده کړه کوې؟

هارون: زه په یوولسم ټولګي کې یم او د عبدالهادي داوي د ښوونځي زده کوونکی یم، ستا د زده کړې حال څنګه دی؟

سېلاب: ګرانه ملګریه، د کورنیوستونزو له امله یو کال له ښوونځي څخه پاتې شوم، اوس په لسم ټولګي کې یم او د محمود طرزي د لېسې زده کوونکی یم.

هارون: سېلاب جانه، د ژبو په زده کړه کې څنګه یې؟

سېلاب: پښتو او دري خومې خپلې ژبې دي، لیکل، لوستل او خبرې کول پرې کولای شم، غواړم چې انګلیسي ژبه هم زده کړم. په دې اړوند ستا حال څنګه دی؟

هارون: دري خو مې مورنۍ ژبه ده، په پښتو ژبه هم تر اندازې پوهېږم، د انګلیسي ژبې کورسونه مې هم لوستي دي.

سېلاب: پوهان وايي: د چا، چې هر څومره ژبې زده وي، په هماغه اندازه ځواکمن دی؛ یعنې د چا، چې یوه ژبه زده وي یو سړی دی، که دوه یې زده وي دوه، په همدې ډول زیات.

هارون:وروره! د ژبې په ارزښت به هاله پوه شې چې کوم بهرني هېواد ته سفر وکړې.

سپلاب: هارون جانه! تاسو کله باندني هېواد ته سفر کړی دی؟

هارون: هو کې! زه تېر کال هندوستان ته تللی وم.

سپلاب: د هغه هېواد خلکو په کومه ژبه خبرې کولې؟

هارون: د هغه هېواد ژبې ګڼې وې، خلکو يې ګڼې ژبې زده وې، د چا سره به چې مخامخ شوې په انګليسي ژبه به درسره ګړېده.

سپلاب: زه په انګليسي څه نا څه پوهېدم، له همدې امله د ژبې د زده کړې په ارزښت پوه شوم.

## درېمه محاوره:

- ستا نوم څه دی؟
- زما نوم نجيب الله دی، تاسو که خپل ځان را وپېژنئ؟
- زما نوم خيبر دی او د ننګرهار ولايت اوسېدونکی يم.

خيبر: نجيب الله جانه، تاسو د کوم ځای ياست؟

نجيب: زه د بدخشان ولايت اوسېدونکی يم.

خيبر: دلته دې څنګه را پيښنه وکړه؟

نجيب: کانکور آزموينه کې د ننګرهار پوهنتون کرنې پوهنځي ته بريالی شوی يم.

خيبر: نجيب جانه، دا خو ډېره ښه ده، تاسوته د برياليتوب مبارکي وايم. زه هم د کرنې په پوهنځي کې محصل يم.

نجيب: زه ډېر خوشحاله يم چې د خپلې خوښې پوهنځي ته بريالی شوم.

خيبر: وروره، دلته خو استادان په پښتو ژبه تدريس کوي او ټول لکچر نوټونه هم پښتو دي.

نجيب: همدا خو زما يوازينۍ هيله وه چې پښتو ژبه زده کړم.

خيبر: تاسو به له ستونزو سره مخامخ نشئ؟

نجيب: هېڅکله هم نه، ژبه د اړتيا په اساس زده کېږي، دا به ډېره ښه شي چې هم پښتو ژبه زده کړم او هم خپل لوړ تحصيل تر سره کړم.

خيبر: تاسو خو په ښوونځي کې هم پښتو ژبه ويلې ده؟

نجیب: پښتو مضمون تر دولسم ټولګي پورې راته تدریس شوی، مګر هغه مهال زه د ژبې په ارزښت نه پوهېدم.

خپیر: اوس څنګه دې تشي ته متوجه شوې؟

نجیب: دا د یو افغان لیاره په ځانګړې ډول، چې لوړ تحصیلات ولري، ډېر لوی کمی دی، چې د خپل هېواد په ملي او رسمي ژبو پوه نه شي.

## فعالیتونه

۱_ درې تنه زده کوونکي دې د ژبې د ارزښت په اړه خپل نظر ووایي.

۲_ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي او مفهوم ته دې پاملرنه وکړي.

۳_ څلورتنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د ژبې په اړه د لوستل شوې کیسې په هکله دې خبرې وکړي.

۴_ زده کوونکي دې په درې ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د ژبې د ارزښت په اړه خپل نظریات په یوه پاڼه کې ولیکي او بیا دې د هرې ډلې استازی د خپلې ډلې نظریات نورو ټولګیوالوته ووایي.

۵_ څو زده کوونکي دې په وار د ټولګي په وړاندې خپل ځانونه په بشپړ ډول نوروته وروپېژني، بېلګه: زما نوم اجمل دی. د احمدشاه زوی او د ایمل لمسی یم. په غور کې زېږېدلی او اوس په کابل کې اوسېږم. لومړنۍ او ثانوي زده کړې مې د غور په یوې لیسې کې سرته رسولي او اوس د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي محصل یم.... .

۶_ دوه تنه زده کوونکي دې د لوست لنډ مفهوم ووایي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ژبې د ارزښت په اړه لس کرښې مقاله ولیکي او د بلې ورځې پښتو مضمون ساعت کې دې ووایي.



# سکندر خان ختک




د پښتو ژبې په ادبي تاریخ کې نومیالي لیکوال او شاعران تېر شوي دي، چې په خپلو تلپاتې ادبي آثارو يې پښتو ژبې او ادب ته بډاینه وربښلې ده.

خوشحال خان ختک او د هغه کورنۍ پښتو ژبې او ادب ته د ستاینې وړ خدمتونه کړي دي. دوی د منظومو او منثورو آثارو په لیکلو او ژباړې سره د پښتو ژبې ادبي او فرهنګي پانګه ډېره بډایه او شتمنه کړه. په کورنۍ کې يې ډېر شاعران او لیکوال وروزل شول چې د شعرونو منظم دیوانونه يې په پښتو ادب کې د یاد وړځای لري.

د خوشحال دکورنۍ یو یاد او د شعري دیوان لرونکی شاعر سکندر خان ختک دی چې په دې لوست کې يې درپېژنو:

ـ یو لیکوال او شاعر ژبې ته څه خدمت کولای شي؟

سکندرخان ختک د پښتو ژبې د ستر لیکوال خوشحال خان ختک زوی دی. ده هم د خپل پلار د ادبي ښوونځي قدرداني او پیروي کړې ده . د زوکړې کال یې څرګند نه دی، خو په آثاروکې یې دځینو یادونو څخه دا جوتېږي چې دی به په (۱۰۶۸هـ.ق.) کال کې زېږېدلی وي او تر (۱۱۱۶هـ.ق.) کال پورې یې ژوند یقیني دی، ځکه په همدې کال کې د ده دوه زامن (منګل ــ انور) مړه شوي دي. سکندرخان د خپلو زامنو په مړینه غم او ویر کې ویرجن او غمجن شعرونه ویلي دي چې بېلګې یې په شعري دیوان کې موجودې دي. د سکندرخان ختک د لاس ته راغلو اثارو له مطالعې را جوتېږي چې سکندرخان عالم او پوه سړی و. په پښتو سربېره په پارسي، عربي او نورو ژبو ښه پوهېده. سکندر خان د خپلې کورنۍ له علمي، ادبي او فرهنګي چاپېریال څخه ښه استفاده کړې ده او د خپلې کورنۍ د سردارۍ په سیاستونو کې شامل و. ده ښه شعري استعداد درلوده چې د هغه په مرسته یې ډېر اوچت او د هنر په ګاڼه سمبال شعرونه ویلي دي. موږ ته یې دا لاندې اثار معلوم دي:

د اشعارو دیوان، د لیلٰی او مجنون مثنوي، شمایلنامه، پندنامه، یوسف او زلیخا. هانري جارج راورټي لیکلي دي چې سکندرخان ختک د مهر و مشتري کیسه هم نظم کړې ده، خو د سکندرخان دغه منظومه کیسه تر اوسه نه ده لیدل شوې. د سکندرخان ختک سبک ډېر ساده، روان او کلام یې خوږ او زړه راښکونکی دی. د پت او عزت ژوند ته ترهر څه زیات قدر او ارزښت ورکوي او عزت یولوی دولت بولي:

| | |
|---|---|
| چې چېرته مې عزت دی | هم هغه زما دولت دی |
| بې عزته روټۍ نه خورم | دا مې خوی دا مې عادت دی |
| یو کاشوک او ګوره بهتره | له غه آش چې په منت دی |

سکندرخان ختک په یوه بولله کې د خپلې کورنۍ او خپل پلار ستاینه په حقیقي رنګ کې کړې ده، څو بیتونه یې د کلام د نمونې په توګه راوړو:

| | |
|---|---|
| ورکــــړه، تـــوره مـــو ځـــايـــي ده | قـــديـــمـــي لـــــرو دا کـــار |
| دا يـــو ځـــو هـــنـــره راوړل | و اولاد تـــه د مـــونـــږ پـــلار |
| اول خـــط دوم ســـــواد دی | دريـــم ښـــکـــار دی بـــل اشـــعـــار |
| ســـيـــال مـــو نـــشـــتـــه پـــه افـــغـــان کـــې | لـــه خـــټـــک تـــر کـــنـــدهـــار |
| د خـــپـــل پـــلار صـــفـــت بـــه څـــه کـــړم | بـــويـــه نـــور يـــې کـــار شـــعـــار |
| کـــه جـــوســـه يـــې د ســـړي ده | زور يـــې زيـــات و تـــرحـــصـــار |
| چـــې بـــه دی پـــه مـــيـــدان پـــېـــښ شـــو | اول ده کـــــاوه گـــــوزار |
| بـــې گـــنـــاهـــه پـــه نـــاحـــقـــه | يـــو مـــېـــږی نـــه و ازار |
| درســـتـــه ورځ بـــه يـــې پـــه ښـــکـــار وه | پـــه شـــپـــه بـــازغـــونـــدې بـــېـــدار |

د متن لنديز:

په پښتو ادب کې يوولسمه او دولسمه هجري پېړۍ ځانگړی ځای لري. د همدې پېړيو په بهير کې خوشحال خان خټک او د هغه کورنۍ پښتو ژبې او ادب ته د ستاينې وړ خدمتونه کړي او د ارزښتناکو ادبي او فرهنگي اثارو په پنځونه يې پښتو ژبه او ادب بډای کړی دی.

دخوشحال خان په زامنو کې سکندر خان خټک يو غښتلی او منلی شاعر گڼل کېږي. په ليکنه او اشعارو کې يې د خپل پلار پيروي کړې ده. د اثارو له مطالعې څخه يې دا جوتېږي چې دی يو عالم او پوه سړی و. په پارسي، عربي او نورو ژبو هم پوهېده. د سردارۍ په سياستونو کې شامل او د خپل پلار سخت ملگری و. د زو کړې دقيقه نېټه يې معلومه نه ده، خو ژوند يې تر (۱۱۶۸) هجري قمري کال پورې يقيني دی.

د اشعارو ديوان، د ليلٰي او مجنون مثنوي، شمايلنامه، پندنامه، يوسف او زليخا يې معلوم اثار دي.



## څرګندوني

### ۱ـ بوللـه:

بوللـه د قصيدې پښتو نومونه ده، د قصيدې لغوی معنا قصد او اراده ده. په ادبي اصطلاح قصيده هغه شعري ډول دی چې تر يوې مطلع لاندې ويل کېږي. اوږده او ډول ډول مضامين پکې راوړل کېږي. د بيتونو شمېر يې له شلو څخه نيولی بيا تر دووسوو پورې رسېږي.

### ۲ـ مثنوي:

د مشترکو نظمونو يو ډول دی چې د هر بيت دواړه مسرې يې يو ډول قافيه ولري. يعنې هر بيت يې په جدا قافيه سره ويل شوی وي. اوږده، اوږده مطالب، تاريخي، رزمي، اخلاقي، عرفاني او داسې نور موضوعات پکې ډېر ښه بيانيدای شي.

### ۳ـ هانري جارج راورټي:

د پيټر راورټي زوی په (۱۸۲۵) ميلادي کال د انګلستان د فل مت په ښارګوټي کې زېږيدلی. راورټي عالي تحصيلات نه و کړي، خو د ډېر اوچت ذاتي علمي استعداد او ذکاوت خاوند و. هندي، فارسي، پښتو، ګجراتي او مرهټي ژبې زده وې. د پښتو ژبې د مطالعې په برخه کې د راورټي ډېر لوی کار د پښتو ژبې د يوه لوی ګرامر ليکل و چې لومړی چاپ يې په ۱۸۵۵م. کې خپور شو. دوه نور مهم اثار يې چې پښتو انګريزي قاموس او بل يې دګلشن روه په نامه د پښتو نثر او نظم يوه مجموعه وه چې په ۱۸۶۰م. کال کې چاپ شول.



## فعالیتونه

۱ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره متن په لوړ آواز ولولي.

۲ـ دوه، دوه تنه زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي، لومړی دې خپل ځان ټولګیوالو ته ورو پېژني او بیا دې هر جوړه زده کوونکي د پوښتنو او ځوابونو په ډول د اړوندې موضوع په باب خبرې اترې وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن نوي لغات معنا او د تختې پر مخ دې په مناسبو جملوکې وکاروي.

۴ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، د خوشحال خان خټک او د هغه کورنۍ د ادبي خدمتونو په اړه دې د سوال او ځواب په بڼه خبرې اترې وکړي، بېلګه:

د خوشحال خان خټک ادبي نهضت په کومې پېړۍ پورې اړه لري؟

دا دوره ولې زیات ارزښت لري؟

د خوشحال خان خټک په زامنو کې د سکندرخان خټک دریځ څه و ؟

تاسو د خوشحال د کورنۍ نور شاعران پېژنئ؟

۵ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنوته ځوابونه ووایي:

- سکندرخان په کومو ژبو پوهېده؟
- د سکندرخان د درې اثارو نومونه واخلئ؟
- راورټې پخپله لیکنه او شاعري کې د چا سبک پاللی دی؟
- راورټې د سکندر خان د اثارو په اړه څه ویلي دي؟

۶ـ دوه تنه زده کوونکي دې د لوست لنډیز نورو ټولګیوالو ته ووایي.



زده کوونکي دې په کور کې د سکندرخان خټک شعر، چې د خپلې کورنۍ په ستاینه کې ویلی دی، ولولي او لنډ مفهوم دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په بله ورځ دې ټولگیوالو ته و وایې.

لاندې متن ولولئ، خوندترې واخلئ:

## ناکامي

د ژوندانه د ناکامیو څخه مه مایوس کېږه!

هغه ژوندکامیاب ژوند نه دی چې تل کامراني لري. هغه خوشحالي سرې نه خوشحالوي چې د درد او خوږ په بیه نه وي اخیستل شوې! د ورځې رڼایي د شپې له تیارې څخه ده!

د لیدو خوند د بېلتانه په غم کې او د ژوندانه فتحه د ژوند په ماتې کې ده.

هغه چې له خدایه ابدي راحت غواړي، هغه د یو داسې جنت ارزو لري چې هلته د لیدو لپاره سترگو پرانیستو او د خوړلو لپاره خولې ښېرته کولو، او د اورېدو لپاره غوږ ایښودو ته اړه نه وي!

ترڅو چې ژوند دی، نو په دې کې برکت له حرکت څخه دی! ځکه: کامل سکون کټ مټ مرگ دی!

هغه چې وایي په دې دنیا کې بدي ولې شته، کمی ولې، او بندیزونه ولې؟ نو دی په حقیقت کې د نیکۍ د پرېمانۍ او ازادۍ قدر نه پېژندني او ددې مرغلرو پوره قیمت اداکول نه غواړي!

هرڅومره چې یوه خوشحالي شانداره وي هغومره هغه لیارې هم سختې وي چې د هغې د حصول لپاره لنډېږي.

د ژوند ناکامي په حقیقت کې هغه کسان غواړي چې د کامیابۍ وړ وي.

(اروا ښاد خادم)



# ســوله



ژوند، کار، سوله درې سره تړلي مفهومونه دي. د ژوند لپاره کار اړین دی، که کار نه وي. د ژوند بهیر ټکنی کېږي، د دوارو لپاره سوله او امن اړین توکي دي. که سوله نه وي د کار کولو زمینه نه برابرېږي، نو ژوند تریخ تېرېږي. دا به ومنو چې سوله د ژوند نوم او ژوند د سولې نوم دی. انسان هغه مهال د هو سایي او سولې په ارزښت پوهېږي چې په کړاو اخته او د جګړې ناخوالې وګوري.

سوله د ژوند لپاره څه ارزښت لري؟

سوله د انساني ژوند بنسټ جوړوي. د ټولنيزې پرمختيا، سوکالۍ، خوښۍ او نېکمرغۍ لپاره سوله او امن اړين توکي دي. چېرته چې سوله وي، هلته نېکمرغي، سوکالي او خوشحالي وي. ماشومان او تنکي ځوانان له وېرې او ډار پرته ښوونځيو ته ځي اوزده کړه کوي. لويان ښځينه او نارينه هر څوک په خپلو دندو او کارونو لګيا وي، خپل بدني او فکري ځواک د خپل هېواد د نېکمرغۍ، ابادۍ او ودانۍ په لاره کې کاروي. چېرته چې سوله او امن نه وي، هلته بشري ژوند له سترګواښ سره مخامخ وي. وګړي يې بدمرغه، پرېشانه او نا ارامه ژوند لري. کلي، ښارونه يې وران او د ښوونځيو دروازې يې تړلې وي.

د سولې په نشتوالي کې په ټوله سيمه کې ناپوهي او بې سوادي خپلې وزرې غوړوي. د وګړو تر منځ د خوښۍ او خندا پر ځای کرکه او نفرت ځای نيسي.

که په يوه سيمه يا يو هېواد کې د جګړې اور بل او نا امني رامنځته شي، نوله تاو يې ګاونډۍ سيمې هم خوندي نه پاتې کېږي. سوله له دوو تنو څخه نېولې، بيا د کورنۍ د غړو، قومونو او ولسونو او په پای کې د يو هېواد دننه د استوګنو خلکو تر منځ د هغوی په ورځني ژوند اغېزکوي. که دوه تنه په خپل منځ کې پر يوه شي خوابدي شي، نو اړيکې يې شلېږي، که په يوې کورنۍ کې د کورنۍ د غړو ترمنځ تاوتريخوالی راشي ژوند يې تريخېږي. که يو ولس په خپل منځ کې يو تر بله په جګړو بوخت وي يا پر يوه خپلواک هېواد باندې پردي بريد او يرغل وکړي، نو عادي او ورځنۍ اړيکې يې شلېږي او ژوند يې له ستونزو سره مخامخ کېږي. وګورئ په جګړه کې ښکېلېدل اوله سولې لاس په سر کېدل انسان له څومره ستر کړاو سره مخامخ کوي. داسې کوم کار او مشکل دی چې په خبرو حل نشي؟ دا هاله کېدونکې دي چې د خبرو د اورېدو لپاره غوږونه کاڼه نشي او ناپوهي بر لاسې نه وي، ځانې ګټې پر ملي ګټو درنې ونه ګڼو. که د ځان ترڅنګ نور هم ومنل شي، زغم او ځان تېرېدنې ته د يو بنيادي اصل په سترګه وکتل شي، نو بيا داسې کومه ربړه نه پاتې کېږي چې حل او هواره نشي.

په پای کې ویلی شو چې د جګړې څېره د انسانانو په وینو لړلې او له بد مرغیو او ورانیو سره مل وي. خلک ترې تښتي او کرکه ورڅخه کوي، خو د سولې څېره چې ټولنه د خوښۍ او نېکمرغۍ په لور بیايي، خلک ورته غېږه پرانیزي.

په لاندې شعر کې د سولې ارزښت په ښه ډول انځور شوی، هغه ولولئ او خوند ترې واخلئ:

هغه ورځ به بختوره وي هر ګوره
چې د سپینو زړونه تور نه وي له توره
کرکه نه وي یوله بله محبت وي
ورور ولي سوله صفا وي ښه نیت وي
مرور خلک یو بل سره پخلا شي
نه چې غوښه او چاره هغه اوداشي
بشري دوستي قايمه په جهان وي
خوښ په سوله هم کافر هم مسلمان وي
نژادي توپیر هیڅ نه وي په دنیا کې
نه په شرق او نه په غرب نه امریکا کې
استقلال منلی حق د هر ملت وي
خو قايم په ملتو کې اخوت وي
دا څو رنګه ساز اواز د هیوادونو
شي یوه ارکسترا د ولسونو
د ګډ ژوند اصل و اساس اصلي منظور وي
جهاني عدل و انصاف صحیح دستور وي
هر ملت په هر نظر کې وي ښاغلی
که په هر رنګ وایین کې وي راغلی

سرې يتوب وي محترم په هر لباس کې
په زري جامو کې وي که په کرباس کې
داسې وساتي هر ځوک خپل مسلکونه
چې ونه کړي يوله بل سره جنګونه
ټول جهان د دوستۍ کور وي سر ترسره
د جنګ وېره شي له زړو نو نه بهره
زور ترلې وي د سولې په قانون
مهار شوي مست او ښان وي د جنون
تويول د وينو شرم او پېغور وي
شرمنده ذليل سر ټيټی ظلم زور وي
جګ شي هر چېرته د سولې بېرغونه
شي په سمه لار روان سياستونه
د انسان زړګی له جنګ او جګړې تور شي
توره ماته شي او جوړ ورنه څه نور شي
خوله نه وي علامه د خجالت
په خدمت خولې کېدل وي شرافت
يوله بله محبت مهرباني وي
د (الفت) هيله او فکر جهاني وي
زه له تاځني ځاربږم ته له ما نه
که جدا هم وي زما آيين له تانه

(ګل پاچا الفت)

د متن لنډیز:

سوله او امن د بشري ژوند د سوکالۍ او ټولنیزې پرمختیا لپاره اړین دي. سوله انساني اړتیا ده، سوله ژوند ته وایي په یوه ټولنه هېواد او نړۍ کې که سوله نه وي، بشري ژوند به له ستر ګواښ سره مخامخ وي او اغېزې به یې په ټولو ملکونو پرېوتې وي. د وګړو ژوند به تریخ وي. جګړه د شخړو او لانجو د حل لاره نه ده، بلکې شخړې او لانجې د خبرو له لارې هوارېږي، تا و تریخوالی د خبرو او تفاهم له لارې لرې کېږي.

هوښیاران هغه دي چې خپلو اولادونو او ماشومانو ته خوږ او نېک میراث پرېږدي، خپلو ځانونو او خپلو هېوادوالو ته د یو هوسا او سوکاله ژوند په لټه کې وي، خپل هېواد د سیمې او نړۍ د هېوادونو په لیکه کې ودروي. دا ټول هغه مهال شونې دي چې خپلمنځي دښمنۍ او تربګنۍ شاته پرېښودل شي، ټولنیزې ګټې پر شخصي ګټو غوره وګڼل شي او پخپل منځ کې یو د بل د منلو زغم موجود وي. د پښتو ژبې نومیالي شاعر ګل پاچا الفت پخپل پورتني شعر کې د سولې د نړۍ په زړه پورې انځور وړاندې کړی دی. شاعر د داسې چاپېربال هیله من دی چې په ټوله نړۍ کې سوله وروروولي وي، خلک، ولسونه پخپل هېواد او نړۍ کې سره پخلا وي، د جنګ جګړې وېره له زړونو وتلې وي، له وینې تویولو څخه کرکه او سوله ییز ژوند ته لېوالتیا وي.

د شاعر پېژند ګلوي:

ګل پاچا الفت د میر سید پاچا زوی، په ۱۲۸۸هجري کال کې د لغمان ولایت په عزیز خان کڅ کې زېږېدلی دی.

الفت د پښتو ادب ځلانده ستوری، پیاوړی لیکوال، شاعر او کره کتونکی و. د الفت چاپ اثار له شلوڅخه زیات او په سلګونو مقالې یې په مطبوعاتو کې خپرې شوي دي. د اثارو له جملې څخه یې:

څه لیکل یا لیک پوهه، ادبي بحثونه، غوره اشعار، غوره نثرونه، د زړه وینا، لوړ خیالونه او ژور فکرونه، ډېر زیات لوستونکي لري. ارواښاد الفت په ۱۳۵۶ لمریزکال دلیندۍ په (۲۶) مه نېټه له دې فاني نړۍ سترګې پټې کړې.

## فعالیتونه

۱_ دوه تنه زده کوونکي دې په وار سره شعري متن د ټولګي په وړاندې په لوړ او از ولولي.

۲_ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي او مفهوم ته دې ځیر شي.

۳_ څو تنه زده کونکي دې په وار سره د تختې پر مخ له متن څخه یو یو بیت ولیکي، بل زده کوونکی دې پخپله خوښه د هماغه لیکل شوي بیت معنا او مفهوم ووایي.

۴_ څلور تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او دوه دوه دقیقې دې د سولې په اړه خبرې وکړي.

۵_ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، یوه ډله دې په منظوم متن کې د تشبیه ارکان په نښه کړي او بله ډله دې پکې د تشبیه ډولونه، بیا دې د هرې ډلې مشر هغه د ټولګی په وړاندې بیان کړي.

۶_ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایې:

- سوله څنګه ټینګېږي؟
- سوله څه ګټې لري؟
- د جګړې زیانونه څه شی دي؟
- په لوستل شوي شعر کې د شاعر هیله څه وه؟

۷_ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې په داسې ډول چې یو د سولې په نوم او بل د جګړې په نوم پخپل منځ کې خبرې وکړې او ځوابونه دې واوروي. بېلګه

سوله: زما نوم سوله دی، د خوښۍ او نېکمرغۍ له سیمې راغلې یم.

جګړه: زه جګړه یم، له هغې سیمې راغلې یم چې ستا پل هلته رسیدلی نه دی.

سوله: دا کوم ځای او کومه سیمه ده؟

جګړه: دا د بد مرغیو، پرېشانیو، ورانیو، ناروغتیا او بېوزلۍ سیمه ده.

سوله: ته زما ضد یې، خلکو ته بد مرغي او پرېشاني ورکوې.

ښارونه ورانوې،

ښوونځي سو ځوې،

له خلکو نه ژوند اخلې،

بېوزلي راولې، ناروغي راولې.

خو زه به ستا دا ټولې هیلې په اوبو لاهو کړم، پرې به نږدم چې دلته نورې ستا منګولې ښخې شي. زه به خلکو ته ارامه ژوند ورکړم، ښوونځي به ورته جوړ کړم، زده کوونکي به په ارامه فضا کې زده کړه وکړي، خلک به ستا (جګړې) کرغېړنه څېره وپېژني، ستا ټغر به د تل لپاره له دې سیمې څخه ټول کړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د سولې تر سرلیک لاندې لس کرښې مقاله ولیکي او د بلې ورځې د پښتو مضمون په درسي ساعت کې دې ولولي.

جګړه د هر ولس تدریجي ځان وژنه ده.

لاندې کیسه ولولئ او پرمفهوم یې ځانونه پوه کړئ:

وايي، یوه ورځ د کوترو یوه ډله (سېل) راغله او په یوې کروندې کې کښېناسته. هلته د غنمو دانې پرتې وې. یوې کوترې ولېدلې، ورو الوته، دانو ته کښېناسته او په ټولولو یې پیل وکړ. نورې کوترې هم ورپسې ورغلې او په دانو ټولولو لګیا شوې. کله چې په دانو مړې شوې، د الوتلو تکل یې وکړ. څو کوترې په دام کې نښتې وې، وانه الوتلای شوې. هرې یوې ټوپونه وهل چې ځان خلاص کړي، خو څه یې لاس ته رانغلل.

په دوی کې یوه هوښیاره کوتره وه، ویې ویل: ((هغه وخت چې موږ دا خوندورې دانې لېدلې وې، باید فکر مو کړی وای چې دا دانې چا او د څه لپاره اچولې دي. که مو فکر کړی وای په دې کړاو به اخته شوي نه وو. اوس هم باید یو فکر وکړو، کېدای شي ځانونه خلاص کړو. لږه دمه وکړئ، کله چې ما وویل نو ټولې په یو دم له ځایه پورته شئ.))

ښکاري چې لږ څه وړاندې ناست و، ویې لیدل چې کوترې په دام کې نښتې دي، ورمنډه یې کړه. په دې وخت کې هغې هوښیارې کوترې د پورته کېدو امر وکړ. ټولې یو دم له ځمکې پورته شوې. دام یې له ځان سره په هوا کړ او لاړې.
ښکاري چې دا حال ولید د کوترو په لور یې ورمنډه کړه. لږه شېبه وروسته یې کوترې له سترګو پنا شوې. د ښکاري تمه پرې شوه او سترى ستومانه راستون شو.



# وروستی لوست

تاسو ددې کال په بهیر کې څو لوستونه ولوستل، نن مو وروستی لوست دی. څو ورځې وروسته به مو تعلیمي کال پای ته ورسېږي. د تعلیمي کال په بهیر کې مو ډېر نوي څه زده کړل. اوس کولای شئ په پښتو ژبه خبرې وکړئ، کتابونه ولولئ، لیکل پرې وکړئ که همداسې دوام ورکړئ، په پای کې به د خپلې مورنۍ ژبې ترڅنګ د یوې بلې ژبې، پښتو ښه ویونکي او لوستونکي هم واوسئ.

ـ له مورنۍ ژبې پرته د بلې ژبې زده کړه څه ګټه لري؟

نن تاسو د یوولسم ټولګي د پښتو ژبې وروستی لوست لولئ. فکر وکړئ کله چې تاسو دا ټولګی نوی پیل کړ، په پښتو ژبه مو ماتې ګوډې خبرې کولې. اوس وګورئ په پښتو ژبه ښې، روانې او سمې خبرې کولای شئ. د نورو په خبرو پوهېږئ. نورو ته خپل ځان په سمه توګه وروپېژندلای شئ. د یو شمېر ټاکلو موضوعاتو په اړه خبرې کولای شئ، آن کولای شئ چې په یوه غونډه کې په پښتو ژبه خپله بیانیه او وینا وړاندې کړئ.

ګرانو زده کوونکو!

تاسو د یوولسم ټولګي د پښتو ژبې په مضمون کې یوازې په پښتو ژبه ګړېدل زده نه کړل، بلکې د پښتو ژبې او ادب (پښتو لرغوني ادب، کلاسیک ادب، معاصرادب، نثر ـ نظم) اړوند مو ډېر معلومات ترلاسه کړل. دا ټول ستاسو د یوکال د زیار او زحمت پایله ده.

تاسو په هر مضمون کې همداسې نوي شیان زده کړي دي. فکر وکړئ که یوکال نور په دولسم ټولګي کې او همداسې په پوهنتون کې هر کال نوي شیان او معلومات ترلاسه کړئ، نو په پای کې به مو څومره نوي شیان زده کړې وي. څومره به ښه وي چې له خپلو زده کړو څخه د خپلې اسلامي ټولنې په رغنده جوړښت، سوکالۍ، ارامۍ اونېکمرغۍ کې کار واخلئ.

وروستي لوست سره یو ځای د استاد ګل پاچا الفت د (دعا) تر سرلیک لاندې نثر هم ولولئ:

## دعا

د ټول جهان واکداره! ته هر څه لرې او هر څه کولی شې د هر چا امید تا ته کېږي او هر څوک هر څه له تا غواړي. ستا خزانې او کارخانې ډکې دي، ستا په باغونو کې د شودو، شرابو او عسلو ویالې بهېږي.

ستا بخششونه او انعامونه بې پايانه دي، ستا د رحمت نور په ځمکو او اسمانو کې نه ځايېږي. فقيران او مسکينان درنه اشتها او د هضمولو قوت غواړي.

څوک درنه په زاريو او دعاګانو او لادونه غواړي، ځينې وايي چې مال او دولت راکړه!

يو وايي جنت مې په کار دی، بل وايي له دوزخه امان او پناه غواړم.

څوک د حورو شو قمن دی او د چا غلمانو ته نيم زړه نشته.

مرتبې او لوړې درجې له تا سره دي، کاميابي او موفقيت ستا په توفيق حاصلېږي.

دين او دنيا ستا په لاس کې ده، راحت او زحمت، عزت او ذلت ستا له خوا انسان ته رسي.

بهار او خزان ته راولې، مرګ و ژوند ستا په اختيار کې دي.

هر څه ته کوې او هر څه له تا غوښتل کېږي.

د دې جهان او د هغه جهان اجرونه، خېرونه، خوندونه او خوشحالي خلکو ته، ته ورکوې.

زه پوهېږم چې تا سره هر څه شته.

زما دعا او د زاهدانو دعا

زما ارزو او د پادشاهانو ارزو يو راز نه ده.

زما سوال د بډايانو او مسکينانو له سوال ډېر فرق لري.

زه نه وايم چې ځمکې او پېسې راکړه.

نه غواړم چې عزت مې ډېر لوړ، رتبه مې لوړه شي.

موټران او اسونه مې نه دي په کار.

قصرونه او عمارتونه نوروته ورکړه!

پټې او باغونه هغه چاته وبښه چې په خاورو نه مړېږي.

په بانکونو کې د سوداګرو پېسې زياتې کړه.

د بزرګۍ اعتبار مه راکوه! ځکه چې ستا په اطاعت او عبادت له خلکو نه اجر او عزت غوښتل راته ښه نه ښکاره کېږي.

زه له دې ټولونه تېر یم او نور څه غواړم.

هو! زه ستا له رضانه خلاف څه نه غواړم.

زه وایم په جهان کې د ظلم بېرغ نسکور کړه.

حق او عدالت ته قوت ورکړه!

په زړونو کې رحم او د خېر مینه واچوه!

په د ماغونو کې د حق نور او د حقیقت رڼا پیدا کړه!

ته کولی شې چې د ظلم قوت په ورو ورو کانو مېده مېده او ذرې ذرې کړې یا د هوا په ماشو ظالمان تباه کړې.

مګر موږ د اتوم په بمونو هم دا کار نشو کولی.

د متن لنډیز:

د کتاب وروستی لوست د تعلیمي کال د پای معنا لري. که د تعلیمي کال پای د هغه له پیل سره پرتله شي، نو سړی پوهېږي چې څومره نوي شیان یې زده کړي دي. همدا زده کړې د پوهې د لاس ته راوړلو لپاره لاره هواروي. په ښوونځیو او د لوړو زده کړو په مؤسسو کې د زده کړې کچه له یو کاله تر بل کاله پورې فرق کوي. د هر تعلیمي کال په تېرېدو سره زده کوونکي نوې زده کړې کوي او نوي معلومات لاس ته راوړي. موږ له خپلو زده کړونه باید سمه ګټه واخلو او خپلې زده کړې د خپلې ټولنې په رغنده جوړښت کې وکاروو.



## فعالیتونه

۱ــ څو زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او د زوړ کال د زده کړو په اړه دې خبرې وکړي.

۲ــ دوه تنه زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي په پښتو مضمون کې د لوستل شوو لوستونو سرلیکونه دې و وایي.

۳ــ زده کوونکي دې په دوو کسیزو ډلو کې د ټولګي په وړاندې مرکې وکړي. هڅه دې وشي چې ټول زده کوونکي پکې برخه واخلي.

۴ــ زده کوونکي دې نثر په پټه خوله ولولي او مفهوم ته دې ځیر شي.

۵ــ څو تنه زده کوونکي دې نثر په پټه خوله ولولي او مفهوم دې نورو ته و وایي.

۶ــ زده کوونکي دې په څلورو ډلو وویشل شي. هره ډله دې د خپلو زده کړو راپور ترتیب او د ډلې مشر دې و وایي. خدای مو مل شه. د نوي تعلیمي کال د پیل په هیله.



## کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې د تعلیمي کال د پای ته رسېدو او د ازموینې د پیل کېدو په اړوند یو لیک خپلې کورنۍ ته ولیکي او د بریالي پای په اړه دې ډاډ ورکړي.

خدای مو مل شه

د نوي تعلیمي کال د پیل په هیله

## گرانو زده کوونکو،

تاسو د سږني تعلیمي کال د پیل ورځې په یاد کړئ. وګورئ، هغه مهال څومره پوهېدئ او اوس څومره؟ ستاسو په سلوک او چلن کې څه او څومره بدلون راغلی. فکر او ذهن مو څومره بدل شوی دی؟ پوهه مو څومره زیاته شوې؟ په لیکلو کې مو څومره وړتیا تر لاسه کړې؟ د موضوعګانو د تحلیل او ارزونې ځواک مو څومره غښتلی شوی؟

که ددې ټولو په توپیر وپوهېدئ، نو ځرګنده ده چې زده کړه مو کړې ده او یو څه مو تر لاسه کړي دي. دلته لیکل شوي لوستونه په ناڅاپي او اتفاقي توګه نه دي راغلی. د هر یو لوست د ټاکلو په اړه ډېر سوچ شوی. د هرمتن د لیکلو په اړه ډېر فکر شوی، کوم مطالب په کومه ژبه له کوم پیغام سره ولیکل شي او تاسو هغه څنګه زده کړئ. د کتاب لیکوالو هڅه کړې، تاسوته داسې ژبه وکاروي، چې هم پرې خبرې کول زده کړئ او هم ترې یو څه پوهه او معلومات ترلاسه کړئ.

هیله ده دا هرڅه ستاسې پوهه، ستاسو ذهنیت او ستاسو وړتیا او لید لوری لا پسې پراخه کړي او د خپل مسؤولیت پر درک او پېژندلو، د اسلامي ټولنې د یو سالم او رغنده غړي په توګه ځان، کورنۍ او هېواد ته د خدمت جوګه شئ.

فعالیت:

زده کوونکي دې د تعلیمي کال د پای په ورځو کې یوه ورځ د خپل ټولګي دننه یوه منظمه غونډه جوړه کړي. بیا دې هر زده کوونکی د تېر تعلیمي کال په اوږدو کې د خپلې پوهې په اړه مفصلې خبرې وکړي. د نیمګړتیاوو په اړه دې سپارښتنې یا وړاندیزونه له ډاره پرته په ځرګنده ووایي. له ښوونځي، ښوونکي، درسي کتابونو او ددې کتابونو له لیکوالو څخه دې خپلې غوښتنې مطرح کړي. ټول زده کوونکي دې په دې فعالیت کې په متوازنه توګه برخه واخلي.

و من الله التوفیق

# وییپانگه



«الف»

ابتذال: بې ارزښتي، ډېر تکراري، سولیدلې

اپریشن: عملیات

اتل: قهرمان، زړور، تکړه، غیرتمن

اتلولي: قهرماني

اثار: نښې، لیکنې، تالیفات

احسان: نېکي کول، چاته یو شی بخښل، د یوچا د بدۍ په وړاندې نېکي کول.

اخته: مبتلا، بوخت

اخوت: وروري

ادب: د اخلاقي منل شو و اصولو په چوکاټ کې منل شوی چلند، د ژوند د سمو لارو چارو دود او فرهنگ پېژندنه

ارادت: له درناوۍ سره یو ځای مینه او علاقه غوښتنه، قصد

ارزښت: ارزش

ارکسترا: ډله ییزه موسیقي

اروابناد: شاد روان

آزموینه: امتحان

استازی: نماینده

استعاره: د تشبه له مخې یو مجازي بیان، پټه او ناڅرگنده خبره، عاریتي معنا اخستنه

اشیا: شیان، څیزونه

اعتیاد: عادت کېدل

آغاز: پیل، شروع، د یوکار پیل

اغېز: تاثیر

اغېزناک: تاثیر لرونکی

افاده: بیان، مطلب، ښودل، ویل، څرګندول

افراط: ډېروالی، له اندازې زیات

امن: له ضرر نه خلاص، مصؤون

امید: هیله، ارزو

انجام: پای، آخر، د یو کار پای

انګړ: حویلۍ

انځور: رسم، تصویر، عکس، څېره په رسامۍ ډول

اوډون: ترتیب، اوډل، ترتیبول

اوبدل: بافت، ګنډل، جوړول

اوونۍ: هفته (یوه اوونۍ اووه ورځې)

روږدی : معتاد، اموخته

اټکل: تخمین، ګومان

اړ: محتاج

اړباسل: احتیاجول، محتاج کول

اړتیا: احتیاج، ضرورتمند

اړخ: پهلو

اړین: ضروري، د اړتیا وړ، حتمي

ایکۍ: پېسه، د کابلۍ روپۍ شپېتمه برخه ارزښت یې درلود

ایلچي: قاصد، خبر رسان

ایله کېدل: خلاصېدل، خوشې کېدل

آیین: لار، مسلک، عقیده، دین، قانون

((ب))

باب: فصل، څپرکی (فصل وباب)

باور: اعتماد

بچ: خلاص، ساتل شوی (له بلابچ کېدل)

بخخه: کڅوړه، خورجین

بدلون: تغییر، تحول

بدیع: نوی، تازه، ښکلی ادبي پوهه چې پکې د شعر او نثر د ښکلا په اړه بحث کېږي.

برید: حمله، حد، اندازه

برېښېده: معلومېده، څرګندېده

برېښېده: معلوم میشد

بشپړ: مکمل

بقا: پایښت

بل (اور):افروخته (آتش)

بلاغت: له وینا سره سم دوړ کلمو او جملوکارونه چې پوهې ته ډېر نژدې وي. لغوي معنا یې انتها اورسېدل دي.

بلیغ: ویناوال، د ویناکولو وړتیا لرونکی

بنسټ: بېخ، تهداب

بهیر: روند، جریان

بوخت: مشغول، مصروف

بوختیاوې: مصروفیتونه، مشغولیتونه

بولله: قصیده

بوډا: پیر

بډای: پولدار، شتمن

بډای: شتمن

بډايي: شتمني

بڼه: څېره، نوع، صورت، شکل

بياځلي: تکراري، دويم ځلي

بېلګه: مثال، نشانه، نمونه

## ((پ))

پالنه (پالل): روزل، پرورانېدن، عبادتکول

پام : توجه، هوش

پاړوګر: دم ګر، مار، دموونکی او نيوونکی

پايله: نتيجه

پايمال: تريښو لاندې کول، لګدمال

پايښت: پايېدونکی، بقا

پت: ناموس

پته: ادرس

پرانستل: افتتاح کول، کشودن، خلاصول

پرتله: مقايسه

پرته: بېله، بدون

پرېکړه: فېصله

پل: قدم، نقش پا، ګام

پلاټ: د کيسې يا ډرامې لومړۍ طرحه چې د ليکوال په ذهن کې رامنځته کېږي،

پلن: هموار، عرض دار

پلن: پياده

پندونه: نصيحتونه

پنځ: طبيعت

پنځېدل : زېږېدل

پنډ: بار

په ګوته کول: نښان دادن

په څېر: په شان، په مثل (د تشبيه ادات دي)

پور: قرض، دين

پوړکی: قشر

پوړۍ: درجه، پته پايه زينه

پير: پلا، وار، دوران

پړاو: مرحله

پړه: ملامتی

پړی: رسۍ، ريسمان

پېړي: جسد

پياوړتيا: غښتلتيا، قوت، ځواک

پېژندپاڼه: کارت هويت، تذکره

پيل: شروع، اغاز

پيلامه: شروع، پيل، لومړۍ برخه

پيېيل: جيل کول، اميل کول

## ((ت))

تاړاک: چوروچپاول، برېد

تبرک: برکت، درناوی، احترام

تحقيق: تتبع، څېړنه، ريسرچ

تحقيقي: څېړنيز

تخليق: خلق کول، ايجادول، ايجاد، منځته راوړل

تخیل: خیال او تصور، په ذهن کې د یو ځيز انځور
تراړ: پرېشان
ترهور: د (ت) په زور وارخطا، سراسیمه
ترور: خاله، عمه
تریو: ترش
تشبیه: یو شی د بل په شان کول، ورته
تقوا: ډار، له گناه ځان ساتل، پرهېزگاري
تگلاره: طرزالعمل، پالیسي
تلپاتې: تل ژوندی، همېشنی، مدام
تم: ځنډ، درېدل
تمه (طمع): هیله، امېد، ارزو
تندی: پیشانی
تنوع: رقم، قسم، نوع، مختلف
التهاب: پړسوب
توانمند: قوي، ځواکمند، توانا
توپیر: فرق
توحید: یو والی، وحدانیت
توکی: ماده، شی، جزء، برخه، عنصر
تړاو: اړیکې (تړښت)، رابطه

((ټ))

ټینگار: تاکید، ټینگېدل، اصرار
ټولنیز: اجتماعي
ټولگیوال: هم صنفیان
ټولگه: مجموعه
ټولگې: مجموعې
ټاکلي: غوره شوی، تعین شوی، معلوم شوی
ټاټوبی: هېواد، د اوسېدو ځای
ټوکېدل: زرغونېدل
ټپ: زخم
ټپي: زخم
ټیټ: لاندې، پایین
ټکنی: ترسیده

((ج))

جوت: څرگند، ښکاره، معلوم
جوتېږي: معلومېږي
جوړښت: ساختمان، ترکیب
جلا: بېل، جدا
جوسه: شکل، قواره
جور: ظلم، زیاتي
جمال: ښایست، ښکلا
جوهر: دیو چا او یا یو شي ذاتي خصوصیت او ځانگړتیا چې هغه ترنورو بېلوي، د شي اصلي ماده
جلاوطن: له هېواد، څخه لرې کېدل
جاویدان: همیشنی، تلپاتې
جوگه: سیال، وړ، اماده، لایق، موزون
جگړه: جنگ
جهت: لوری، طرف، خوا

جلاد: مامور کشتن، سنگدل

جونګی: چوچۀ شتر

((چ))

چټلي: کثافات، مرداري

چټل: کثیف، ناپاک

چلند: چلن، خوی، سلوک، کړه وړه، تګ راتګ

چپاو: یرغل، حمله

چور: تالا، غل

چاپېریال: محیط

چار: کار

چارواکی: د واک او صلاحیت خاوند د چارو واکمن، مامور، د منصب څښتن

چمتو: اماده، برابر

چمتوالی: امادګي

((څ))

څوړوالی: ښکته والی، ټیټوالی

څېل: نوع، قسم

څیلونه: انواع، قسمونه

څیرکتل: په غور کتل، دقت کول، عمیق نظر

څواک: قوت، زور

څواکمن: قوي، د زور او قوت خاوند

ځانګړنه/ځانګړتیا: خصوصیت، خاص والی، یو شی چې له بل شي څخه بېل وي

ځلاند: روښان

((ح))

حاجت: ضرورت، اړتیا

حال: باطن

حد: اندازه

حریت: ازادي

حساس: ارزښت لرونکی، د پام وړ، د چټک او ډېر ژر موندلو ځواک هغه څوک چې ډېر ژر خپه کېږي.

حسرت: افسوس، ارمان

حصار: قلعه، دېوال

حمد: د خدای ﷻ ستاینه

حیثیت: ټولنیز ارزښت او اعتبار چې د یو چا د سر لوړی او نېکنامی لامل کېږي، درنښت

((خ))

خاپوړي: چارغاوک

خام: اوم، اومه، هغه څیز چې پوخ نه وي، نارسیده

خامخا: هرو مرو

خاوند: صاحب

خبریال: د تازه خبرونو ټولوونکی او

لیکونکی

خبرې اترې: محاوره، گفتگو

خشمېدل: قهرېدل، غوسه کېدل

خصوصیت: ځانگړنه، خاص والی

خط: لیک

خطاء: گناه، وبال

خمېر صندل: د قندهار په لهجه یو قسم شېریني ده

خواجه: خاوند، بادار

خواخوږي: همدردي، دلسوزي، غمشریکي

خوار: عاجز، کم بخت

خوسا: یو شی چې ډېر پاتې شوی او ځنډنی شوی وي (بوی یې کړی وي) (وروست)، گنده، بدبو

خوله خوځول: اعتراف کردن

خوله واچوله: دهن انداخت

خوندي: محفوظ، ساتل شوی

خوځښت: حرکت، نهضت، غورځنگ

خوږ: شېرین

خوږ: درد

خیر: ښېگڼه

خړوب، خړوبول: موړ، سېراب، پېول، اوبونه، اوبه کول

خیال: چرت

خیریه: خیر رسوونکی

((څ))

څاڅکی: قطره

څاڅکي څاڅکي: قطره، قطره

څنگ: اړخ، پهلو، لوری

څېرمه: څنگ ته، خواته، اړخ ته، نږدې

څاښت: تېکنی غرمه، کچه غرمه

څارنه: تر سترگو لاندې ساتل، مراقبت

څومره والی: کمیت، اندازه

څرنگوالی: کیفیت

څېړنې: تحقیقات

څېړنیز: تحقیقي

څښتن: خاوند، صاحب

څېر: ورته، غوندې، ډول

((د))

دام: د الوتونکو د نیولو وسیله، چل وفریب

دامگاه: لومه ځای

دایرة المعارف: د علم، ادب، هنر، ورزش او هغوی ته ورته د نورو شیانو په اړه د بشپړو معلوماتو کتاب چې معمولاً د الفبې په سیستم پیلږي (انسایکلو پیدیا)

درسته: ټوله

درمل: دارو

درملتون: د دوا د خرڅولو ځای

درناوی: درنښت، قدر، عزت

درنوي، درنول: قدر و عزت
دریځ: مقام، منبر، موقف
دریځ: مقام، ته د درېدو ځای، منبر، موقف
دقت: ځیرنه، پاملرنه، توجه
دنده: وظیفه
دود: رواج
دود و دستور: رسم و رواج
دودیز: رواجي
دور: زمانه، دوران

((ذ))

ذات: اصل، ماهیت، وجود
ذاتي: اصلي، خپل، شخصي
ذلیل: خوارو زار، ډېر ضعیفه
ذهنیت: د تفکر، لید یا قضاوت یو ډول
ذوق: خوښه، شوق، طبع

((ر))

راز: پټه خبره، سر
راشه درشه: تګ راتګ
راضي: خوښ
ربړه: ستونزه
رجوع: ورګرځېدل
رحمت: زړه سوی او مهرباني
رختونه: لباس، جامې
رزمي: جنګي، حربي
رغاونه: جوړونه، ابادونه
رعیت: د یوې خاورې ټول وګړي چې د یو حکومت تابع وي
رغنده: سم، روغ
رکن: جز
روزل: تربیه کول، پالل
روغ: جوړ، صحت
روغبړ: احوال پرسي
روغتون: شفاخانه
روغتیا: تندرستي
رومان: خیال، نثري داستان چې پېښنو یې د انسان له ژوند څخه سرچینه اخستې وي
روټۍ: ډوډۍ، مړۍ
روښان: روشن
روښانول: روشن کردن
روښانیان: د روښان مریدان او پیروان
رټلی: شړلی، تهدید شوی
رښتنولي: راستکاري، صداقت
رښتینولی: صداقت
رښتیني: واقعي
رېبي، رېبل: لوکول، غوځول، پرې کول، دروکردن

## ((ز))

زړور: د لاور

زاړېدل: قربانېدل، فراشدن

زانګو: ګهواره

ځپل: اذیت کول

زده کړه: تعلیم، اموزش

زغمل: تحمل کول

زلال: صاف او شفاف، رنې، پاکې او خوږې اوبه

زوال: له برمه لوېدل یا غورځېدل

زوکړه: پیدایش، تولد، زېږېدنه

زوږ: شور، غالمغال

زړه بدی: خپګان

زړه سوی: دلسوزي، ترحم

زړې جامې: لباس کهنه

زړښت: پیري

زیاتره: اکثره، زیاده

زیار: کوښښ، هڅه، زحمت

زیارکښ: زحمت کش

زیانمن: تاواني

زېرمه: سیما، پاسره، ساتل شوی

زېرمې: ذخیرې

زیور: ګاڼه

## ((ژ))

ژانر: ژانر فرانسوي کلمه ده د ادبي او هنري اثرونو ځانګړې بڼه

ژباړل: ترجمه کول

ژباړه: ترجمه

ژغورل: نجات دادن

ژغورل: ساتل

ژمنه: وعده

ژمنه: وعده

ژوبله: جنګ جګړه، زخم، ټپ

ژوندود : کلتور، دود او دستور

ژوي: ساکښ، ذیروح

## ((س))

ساوتیګا: خسته

ساری: همتا، مانند، مثال

سالو وږمه: نسیم ریګستان ( د پښتو نثر لومړنی اثر دی چې په لاس کې نشته)

سپارښتنه: سفارش، تاکید او ټینګار

سپړل: په دقت سره جدا کول، مجزا ساختن

سپېڅلی: پاک

ستاینه: صفت، ستایش

ستایل: صفت کول

ستاینه: صفت

ستره: لویه، غټه

ستونزه: ربړه، مشکل
سجع: په نثرکې هم آهنگي
سر لیک: عنوان
سر ښوونکی: سرمعلم
سکون: ارام درېدنه، چوپتیا
سلسله: لړۍ
سمبال: بسیج، په هرشي پوره
سمه، سما: سم، اصلاح، درست
سنتې: له پخوا څخه دود شوی، پخوانۍ ريښنه لري.
سوکالي: ارامي
سته: بېخ، تهداب
سیال، ساری: مانند، مثل، ورته سړی، رقیب
سیالي: لوبه، مسابقه
سېلاني: گرځندوی، سیاح، سیل کوونکی

## ((ښ))

ښکلاوې: زيبايي، ښايستونه
ښوونکی: معلم، استاد، اموزگار
ښکلا: حسن
ښکلی: حسین، خوبصورت
ښوونځی: مکتب
ښوونه او روزنه: تعلیم، و تربیه
ښه راغلی: پذیرایي
ښېگڼه: احسان، نیکي، خوبي
ښکېل: نښتی
ښکېلېدل: نښتل
ښندي: قربانوي
ښادي: خوشحالي
ښادي: خوشحالي

## ((ش))

شان: طور، مانند
شاوخوا: گرداگرد
شتمن: بډای، د مال او شتو خاوند
شتمني: ثروت، دارايي، مال و دولت
شخړه: جنجال، کشاله
شریعت: طریقه، لار
شفاهي: په خوله ویل، د خولې په یادو، د خولې خبرې
شفقت: مهرباني، زړه سوی
شکرې: خواږه شيان، بوره
شهامت: زړورتیا
شهکار: ډېر ښه، لوړ او عالي
شونتیا: امکان
شونډه، شونډې: لب، لبان
شونې: کېدونې، کېدونکی
شېبه: لحظه، دم

## ((ص))

صادق: لوړ، رښتونی

صداقت: رښتونولي

صدری: واسکټ (په قندهار کې واسکټ ته صدری وایي)

صراحت: څرګندتیا

صرف: یوازې، تش

صرفه: سپما و ګټه

صنعت: جوړېدل، سازېدل، جوړشوي شیان

صنم: بت، د معشوق په معنا هم کارول شوی.

صورت: پیکر و نقش

صوفي: پاک نفس، د تصوف د طریقت پیرو

## ((ط))

طریقت: لاره، د نفس د تزکیې له لارې د حقیقت د ترلاسه کولو سلوک، مسلک

طنز: په شعر یا نثر د ادبي بیان لارچې پکې فردي او ټولنیز عیبونه او نیمګړتیاوې په خندوونکي ډول برسېره کېږي موخه یې دبشري چلن سمول دي.

## ((ظ))

ظلمت: تیاره

## ((ع))

عابد : پرهېزګار، متقي، تقوا دار

عارض: عرض کوونکی، شکایت کوونکی

عارضي: غیر اساسي، فرعي

عارف: د خدای جل جلاله پېژندونکی، پوه، هوښیار

عاصي: ګنهګار

عاطفه: زړه سوی

عاقبت: پای، اخر

عالي: لوړ، شریف، محترم

عدل و داد: عدل و سخاوت

عرف: رسم و رواج، عنعنه

عرفان: پوهه

عواطف: احساسات، جذبې، ولولې

## ((غ))

غبرګ: ورتاوول

غبرګون: ځواب، عکس العمل، غبرګ ورتاوول

غچ: انتقام

غرور: لویې

غلیمان: دښمنان

غندنه: بد ویل، غندل

غور: تاکید، دقت

غورځنګ: نهضت، حرکت

غوسه: قهر

غړومبېده: عر عر میکرد

غیرواجب: غیر لازم

((ف))

فراق: جدایي

فصاحت: د وینا رواني او ځرګندتیا

فضل: په پوهې، اخلاقو او هنرکې غوره والی، لطف، پام

فطرت: ذاتي ځانګړتیاوې، پیدایښت

فقیر: بېوزلی، سالک

فلک: اسمان

فورم: شکل

فرهنګ: د دود او دستور فکر او د ژوند د لارې پېچلې ټولګه (مجموعه) چې د ولسونو په تاریخي بهیر کې تجربه شوي او نورو نسلونو ته د لېږدېدنې وړوی.

((ق))

قابل: منونکی

قاتل: وژونکی

قاچاق: د یو شي ناقانونه وړل

قاصر: قصوره، لټي، نیمګړتیا، عیب

قالب: چوکاټ

قاموس: سیند (د یوې ژبې د لغاتو کتاب)

قانون: لاره

قد: ونه

قدر: قدر، پت

قدرت: وس، واک

قدیم: پخوانی

قصاص: هم مثله سزا ورکول

قوم: ټبر

قوي: زورور

قیامت: محشر، وروستی، له مړینې وروسته د راپورته کېدو ورځ.

قیمت: بیه

((ک))

کابینه: کابینه (د وزیرانو شورا)

کار: چار

کارنامې: لوړکارونه، مهم کارونه

کارول: استعمالول

کاشکې: ارمان، افسوس

کاکا: تره (د پلار ورور)

کامل: بشپړ

کانون: ټولنه

کبرجن: متکبر، مغرور

کتابتون: کتابخانه

کچه: اندازه

کرکتر: هغه شخص یا لوبغاړی چې د کیسې لیکوال یې د پېښو د بهیر پرمخ بیولو لپاره ټاکي

کرکه: نفرت، لرې والی

کرم: ورکړه، بخښنه
کره: پوره، خالص، صاف
کره کتنه: نقد، انتقاد
کرهنه: زراعت
کروړ: محکم
کشف: لوڅونه
کلام: خبره
کله: څه وخت
کليوالي: دهاتی
کلی: قريه، ده
کليات: مجموعه، د يوشاعر يا ليکوال د ليکنو مجموعه
کليوال: دهاتي
کمپډي: د ډرامې يوه برخه ده (خندنۍ)
کنايه: پېچومی، زونګه، پټه خبره چې د ټاکلي او خاصې معنا لپاره کارول کېږي
کنډه: تله، ترازو، ترازو خورد
کنډواله/کنډوالي: وېرانه، خرابه
کوثر: د جنت يوه چينه
کوچنی: (طفل) خورد
کورنۍ: خاندان اهل بيت، فاميل
کوشېر: پتری، پېوند
کوميکه: خندنۍ
کټ مټ: عيناً
کڅوړه: خريطه
کړنلاره: پروګرام، دستورالعمل، خط شي
کړنه: عمل، کردار
کړلېچونه: ګج ګردېشي، ګولايي، پېچومي
کښل: کشيدن، خارج کردن، نوشتن، نقاشي کردن
ګالل: برداشت کردن، تحمل کردن، زغمل، کښل.

## ((ګ))

ګام: قدم، مسافه بين دو قدم
ګانده: آينده
ګاونډ: دکور او کلي شاوخوا
ګاونډی: همسايه، همجوار
ګاڼه: پسول، زيور
ګدا: فقير
ګران: مشکل، قيمتدار
ګرانښت: عزيز بودن، قيمتي، اشکال
ګرداب: ګرداو
ګروپ: ډله
ګرځندوی: سياح، سيار
ګهيځ: صبح، سحر
ګواښ: اخطار، تهديد/ جدا کردن از جنګ
ګور: مړستون، قبر
ګوګل: صندوق سينه
ګومارل: تعيين کردن
ګوند: حزب، جنبه
ګوندې: شايد، به احتمال

گوهر: مرغلره

گټور: ارزښمن، مفید، فایده مند

ګډ: شریک

ګډون: اشتراک

ګډوډ: بې ترتیب و بې نظم

ګڼ: ډېر، زیات، انبوه، غلو

ګڼل: شمردن، قیاس کردن یا پنداشتن

ګڼه: شماره

ګڼه ګوڼه: انبوه، خلق، ازدحام

ګېډه: شکم

## ((ل))

لارښود: رهنما

لارې چارې: د کارونو د سرته رسولو طریقه او وسیله

لاس اچول: دست انداختن

لاس کښلې نسخه: خطي نسخه

لاسوندی: سند، ثبوت

لامل: علت، سبب

لرغونی: پخوانی

لګول: لګښت، مصرفول، مصرف

لمسون: تحریک، پارونه، تحریکول

لنډیز: اختصار، لنډون

لوری: طرف، خوا

لوست: درس

لوستی: د زده کړې خاوند

لونل: پاشل

لوړ: جګ

لغ: برهنه

لړ: سلسله

لړ: جریان

لړلیک: فهرست

لیکدود: د لیکلو طرز یا طریقه

لیکنې: نوشتې، آثار

لیکه: کرښه، قطار، لین

لېوالتیا: ډېره مینه او علاقه

لېږد: انتقالول

## ((م))

مبالغه: له اندازې او حد زیات

مترادف: یوشان، هم معنا لغات چې شکل مختلف او معنا یې یوه وي

مجاز: د (م) په پېښې، روا، جایز

مجاز: د (م) په زور له خپلې معنا پرته یوه کلمه په بله معنا کارول

مخکښ: پیشرو

مخکې: پیش، سابق، قبل

مخه کړه: روی آورد

مخه ښه: وداع، خدا حافظي

مخینه: سابقه

مرسته: تعاون، امداد، کومک

مرستیال: معاون

مرکه: مجلس، مذاکره
موسکا: خندا، تبسم
مشران: کلان سالان، بزرگان، مو سفیدان
مشرتابه: مشرتوب
مشغول: بوخت، مصروف
معاصر: اوسنی، هم عصر، اوسمهال
معتاد: روږدی، عملي، په نشه اخته
معمار: جوړوونکی
مل: ملګری، همراه
مُناجات: د میم په پېښ، دعاء التجا، هغه بیان چې خدای ته پکې زاری شوې وي
منت: احسان
منګ: مقدار و اندازه در عمر و جنس
منګول: پنجهٔ دست
مننه: شکریه، تشکر
منځنی: متوسط، د منځ
مهاجم: حمله کوونکی، تېری کوونکی
مهال: وخت
مهجور مهاجرت: پردېس، پردېستوب
موخه: هدف، نشانه
مورنی: مادري
موټان: بازو، قوت
موړ: سیر، دولتمند
مړاوي: پژمرده
مېږل: مروړل، مبتل
مېړانه: غېرت، شجاعت، بهادري
مېړانه: مردانه ګی

((ن))

ناتار: تاراج، ستم
ناخوالې: ناسزا، نامناسب
ناروغ: بیمار، مریض، ناجوړ
نارینه: مرد، مذکر، شجاع، دلاور، سخي
ناسوب: غیرحاضر
ناشونی: نه کېدونکی، امکان نه لرل، ناممکن
ناورین: خپګان، غم، مصیبت
ناوړه: نا مناسب
ناڅاپه: ناګهان
ناڅاپه: ناګاه، دفعتاً
نتلی: خوار، ځپلی، زار و زبون
ندرت: کله ناکله، نادر، کم یافت
نرمي: ملایم
نغښتل: را تول، سره یو ځای کول، پیچاندن
نغښتی: پیچلی
نمانځل: پرستش وستایش، اعزاز و تقدیر
نمو: وده، لوېدنه
ننګ: غیرت، حمایت
ننګه: حمایت، غیرت
ننګیالی: باغیرت، بلند همت
نهضت: خوځښت، غورځنګ، تحریک

نهیلی: نااميد

نهيلي: نا اميد، مايوس، ناهيلي

نور: ديگر، اضافه (اوداسې نور)

نوم: نام، اسم

نومورکی: گمنام

نوموړی: نامبرده، مذکور

نوميالی: مشهور، نامور، نامدار

نومېدل: مسما شدن، ناميده شدن

نړېدل: ويران شدن، تخريب شدن

نړيوال: جهاني، بين المللي

نړۍ: دنيا، جهان

نږدې: قريب، نزديک

نياز: اړتيا، حاجت، ضرورت، عذر، زارۍ

نيالگی: نهال

نيکمرغه: نېک بخت، خوشبخت

نيمگړتيا: نقص وناتمامي

نيمگړی: ناقص، نا کاره

نيوکه: انتقاد، نويوالی

نيول: گرفتن

نېټه: تاريخ، وخت

((و))

وار: نوبت، دفعه

واک: اختيار، قدرت، طاقت

واړه: کوچنيان

واکمن: اختيار دار، بادشاه، صاحب

واکمني: پاچاهي، حاکمي، امارت

واړه : ټول، تماماً، همه، کل

وچکالي: خشکسالی

ودان: اباد، معمور

ودانول: اباد کردن، جوړول

وده: نشو نما، ډېرښت، زياتوالی

وراره: د ورور زوی، برادر زاده

وراره: ورور مرې

ورانول، ورانی: خراب کردن، خرابي، ويران کردن

ورته: مشابه، برايش

ورته کول: مشابه کول، تشبيه کول

ورغوی په غاښ پرېکول: تاثر او تاسف کول (کنايه ده)

ورکړه: بخشش دادن، سخا

ورمونه: نصيحتونه، پندونه

وروزي، روزل: تربيه کند

وروستنی: اخرين، عقب

ورځپاڼه: روزنامه

وصال: يو ځای والی

وصف: صفت، خصوصيت

وگړي: خلق

ولوله: جذبه، احساس

وموسکېد ، موسکا: خنده بر لب، تبسم

ونډه: برخه، حصه

وينه: خون

وړ: لایق

وړ: لایق، مناسب

وړتیا: مهارت

وړیا: مفت و رایگان

وياند: نطاق

وياړنه: افتخار

ويني: گوري، ديدن، می بيند

وينې: خون

## ((هـ))

هرو مرو: حتما

همدارنګه: همين قسم

همځولی: همسال، همسن

هنداره: آيينه

هوساينه: ارامي، سلامتي

هوډ: عزم، اراده

هيښ: حيران

هټيوال: دکاندار

هټۍ: دوکان

هڅه: کوښښ، طلب، تلاش، جستجو

هيله: اميد، ارزو، تمنا

هېواد: وطن، مملکت

هيښ: حيران، متعجب

## ((ي))

يتيم: پلار مړی، يتيم

يرغل: حمله، هجوم ناګهاني

يوازې : تنها، مجرد، يکه

يون: خوځښت، حرکت، رفتار، خوی، عادت

يو والی: اتفاق، يګانه ګي، يکي بودن

# اخځلیکونه




۱ـ الفت گل پاچا، لیکوالي (املاء انشا) کابل: پښتو ټولنه، (۱۳۳۹) لمریز

۲ـ الفت گل پاچا، د الفت نثري کلیات، د محمد اسهیل یون په زیار، الفت اکادمي، دانش خپرنځی، (۱۳۷۸) لمریز

۳ـ الفت گل پاچا، د الفت مرغلرې، د شهرت ننگیال په زیار، پېښور: دانش خپرندویه ټولنه، (۱۳۷۵) لمریز

۴ـ بېنوا عبدالرؤوف، ادبي فنون، کابل: پښتو ټولنه، (۱۳۲۶) لمریز

۵ـ بابا عبدالرحمٰن، د رحمان باباکلیات، حنیف خلیل، دانش خپرندویه ټولنه، (۱۳۸۴) لمریز

۶ـ پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس (په څلورو ټوکونوکې) افغانستان، د علومو اکاډمي د ژبو او ادبیاتو مرکز، مېډیوتیک، (۱۳۸۳) لمریز

۷ـ پښتو- دري لنډ قاموس، مهتممه: ظاهره هنگامه خروټې، د افغانستان د علوموا کاډمي، د ژبو او ادبیاتو مرکز، ازادۍ مطبعه، (۱۳۸۴) لمریز

۸ـ فرهنگ مختصر دري ـ پښتو، مهتمم: محمد متین مونس، اکاډمي علوم افغانستان، (۱۳۲۴هـ.ش.)

۹ـ حبیبي عبدالحی، د پښتو ادبیاتو تاریخ دویم ټوک، کابل: پښتو ټولنه، (۱۳۴۲هـ.ش.)

۱۰ـ خادم قیام الدین، بایزید روښان،

۱۱ـ خټک عبدالقادرخان، گلدسته، د سید محی الدین هاشمی په زیار، د افغانستان د علومو اکاډمي، د پښتو څېړنو نړیوال مرکز، (۱۳۸۳) لمریز

۱۲ـ روښان یاد، د بایزید روښان د نړیوال سیمینار د مقالو مجموعه، د حبیب الله رفیع په زیار او اهتمام، پښتو ټولنه، (۱۳۵۵) لمریز

۱۳ـ رښتین صدیق الله، ژبښودنه، کابل: پښتو ټولنه، (۱۳۴۳هـ.ش.)

۱۴ـ رفیع حبیب الله، لیکونه سرلیکونه، لاهور: امان کتاب خپرولو مؤسسه، (۱۳۷۷هـ.ش.)

۱۵ـ روهي محمد صدیق، د څېړنې لارښود، کابل: پښتو ټولنه، (۱۳۴۳هـ.ش.)

۱۶_ رضا محمد افضل او عبدالکافي اديب، د پښتو ژبې او ادب تاريخ، پېښور: تاج کتب خانه، محله جنگي
۱۷_ رضا محمد افضل، د پښتو د نثر تاريخ، يونيورسټي بک ايجنسي، پېښور، خيبر بازار، (۱۹۶۸) ميلادي.
۱۸_ زاهد مشواني عبدالقيوم، پښتو سيند، دانش خپرندويه ټولنه.
۱۹_ زيور زيورالدين، د پښتو ادبياتو تاريخ، د ساپي پښتو خپرونو مرکز، (۱۳۸۶) لمريز کال
۲۰_ سنگروال نيازی شهسوار، د پښتو ادبياتو معاصر تاريخ، لرغوني ادبي دورې ته يو ځغلنده نظر، د منځنۍ ادبي دورې يو لنډ جاج، احمدشاه ابدالي پوهنتون، پېښور دانش کتابخانه، (۱۳۷۵) لمريز کال
۲۱_ شېرزاد محمدآقا، ادبي فنون (بديع _ بيان)، ښوونې او روزنې پوهنتون، (۱۳۸۴) لمريز کال
۲۲_ کاکړ شمس الدين، د شمس الدين کاکړ ديوان، دويم چاپ، کابل: پښتو ټولنه، (۱۳۸۵) لمريز
۲۳_ منگل علي محمد، د فاضل استاد اکاډمېسن پوهاند عبدالشکور رشاد ياد، کابل: نعماني مطبعه، (۱۳۸۳ هـ.ش.)
۲۴_ مصايب الدخان (د تمباکو زيانونه) مؤلف سيدعبدالغفار الهاشمي الافغاني، مترجم عبدالله بختاني خدمتگار (۱۳۸۸) کال د غبرگولي لسمه
۲۵_ هاشمي سيد محی الدين، د ليکوالۍ فن، پېښور دانش کتابخانه، قصه خوانی بازار، (۱۳۷۲ هـ.ش.)
۲۶_ هوتک محمد بن داود، پټه خزانه، د پوهنې وزارت، دويم چاپ، (۱۳۳۹) لمريز کال
۲۷_ همکار محمد ابراهيم، د بديع فن او پښتو شاعري، دويم چاپ، کابل: دانش خپرندويه ټولنه، (۱۳۸۸) لمريز
۲۸_ هېواد مل زلمی، د پښتو ادبياتو تاريخ (لرغوني او منځنۍ دوره) دانش خپرندويه ټولنه (۱۳۷۹) لمريز کال.
۲۹_ د ملنگ جان خوږې نغمې
۳۰_ پښتو لومړۍ ژبه د يو ولسم ټولگي لپاره، مؤلف: محمد قاسم هيله من، (۱۳۹۰ هـ.ش.) کال، کابل.